# شهامت

**په هیواد کې وروستي سوبې**

**د بلې سترې فتحې پیغام لېږدوي !**

لسم کال، دويمه، پرلپسې ۵۸مه گڼه، ذي القعدة ۱۴۳۷هق، اگست ۲۰۱۶م

**د علماوو په عنوان داحتمالي جوړېدونکي کنفرانس په تړاو**
**د اسلامي نړۍ علماء کرامو ته د اسلامي امارت پيغام**

**د کونړ ولایت له جهادي مسؤول**
**مولوي محمد اسمعیل سره مرکه**

- ستنېدونکيو مهاجرينوسره دافغاني پوليسوبېلگه ظلم!!
- په ترکيه کې ناکام بغاوت اوکامياب قيادت
- مجاهدينو مه خپه کيږئ!
- رښتيا! عمري بريدونو اوفتوحاتو څه په داگه کړل؟
- ....دتاريخ ترټولو اوږده ناکامه جگړه!
- داسلام اولويديځ کلتوري جنگ!
- اشرف غني دروان جهاد نسبت ولې گاوندي هيواد ته کوي !!؟

**رسنۍ به رسوا شي**



# شهامت

علمي، کلتوري او اسلامي مجله

لسم کال، دویمه، پرلپسې ۵۸مه ګڼه، ذي القعده۱۴۳۷هق، اګست۲۰۱۶م

**دامتیاز خاوند :**

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :**

ابو ظهیر

**کتنپلاوی :**

شاهد "حقاني" لطیف عزم
حسن " علوي" بلال "وحید"
نعیم " صافی " عابد مجاهد
قاري حبیب

**بیه :**

یوه ګڼه ۲۰ افغانۍ او ۳۰
کلدارې په پاکستان کې

**تخنیکي مسؤل :**

تخنیکي څانګه

**یادونه**

شهامت له سرمقالې پرته دنورو لیکنو مسؤلیت
په غاړه نه اخلي.

## لړلیک


| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | سرلیکنه................................................... | ۱ |
| ۲ | دعلماوو په عنوان داحتمالي جوړیدونکي کانفرانس په تړاو... | ۳ |
| ۳ | ستنېدونکیو مهاجرینو سره دافغاني پولیسو بېلګه ظلم!!...... | ۷ |
| ٤ | مجاهدینو مه خپه کیږئ!............................ | ۹ |
| ۵ | رسنۍ به رسوا شي!!....................................... | ۱۲ |
| ٦ | اشرف غني د روان جهاد نسبت ولې ګاونډي هیواد ته کوي!!؟. | ۱۴ |
| ۷ | ربنتیا ! عمري بریدونو او فتوحاتو څه په ډاګه کړل؟.......... | ۱۶ |
| ۸ | دتخیل په دنیا کې له ازادۍ سره مرکه........................ | ۱۹ |
| ۹ | دتاریخ تر ټولو اوږده ناکامه جګړه!............................ | ۲۶ |
| ۱۰ | په طالب پوهنه کې ددښمن ستونزه........................ | ۲۸ |
| ۱۱ | دکونړ ولایت له جهادي مسئول مولوي محمداسماعیل سره..... | ۳۰ |
| ۱۲ | هغه چې دجاهلیت غرور یې مات کړ.......................... | ۳۵ |
| ۱۳ | ګلورینې پاڼې........................................... | ۴۰ |
| ۱٤ | آیا افغانستان کې امریکا پرمختللي دفاعي سیستم دکومو..... | ۴۲ |
| ۱۵ | داسلام او لویدیځ کلتوري جنګ!........................ | ۴۳ |
| ۱٦ | ابن ماجه رحمه الله ژوند او تالیفات........................ | ۴۵ |
| ۱۷ | دازادۍ دورځې په پلمه.....!!................................ | ۴۷ |
| ۱۸ | دپوچ کارتوس دمعما حل؛ ۳۰ کاله د راز په پردو کې پټ....... | ۴۹ |
| ۱۹ | زمونږ شاتګ او دلویدیځ پرمختګ راز په څه کې دی؟....... | ۵۲ |
| ۲۰ | دلویدیځ دنړیوالي لاملونه............................ | ۵۴ |
| ۲۱ | چنګیز خان څوک و؟.................................... | ۵۸ |
| ۲۲ | په ترکیه کې ناکام بغاوت او کامیاب قیادت.................... | ۵۹ |
| ۲۳ | دشهامت دار الافتاء.................................... | ۷۰ |


ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان بریښنالیک: Sham.shahamat@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# په هېواد کې وروستۍ سوبې

## د بلې سترې فتحې پیغام لیږدوي !

څنګه چې نن سبا د ګران هېواد له لر او بره د ننګیالیو او باتورو مجاهدینو په لاس د پراخو ستراتیژیکو سیمو او ولسوالیو د شاندارو فتحو نیکمرغه زیري راځي او د افغان ولس د عقیدې او خاورې د ښمن ځواکونه د خپلې شرمنده ماتې تر خپ شیبې لنډوي. په ازادۍ او سلام باندې مین مظلوم افغان ولس ته د خپلې سرتاسري ازادۍ او فتحې ډاډ ببښي.

د خپلواکه خبري سرچینو په وینا: مجاهدینو په روانه میاشت کې په ننګرهار، لغمان، لوګر، غزني، پکتیا، پکتیکا، خوست، میدان وردک، کندهار، فراه، غور، بادغیس، فارياب، سرپل، بغلان، تخار، کندز او هلمند کې د تندریزو تهجمي عملیاتو او بریدونو په لړکې د دښمن ځواکونو ته د بیسارې مرګ ژوبلې او زیانونو په اړولو سره یو شمیر مهمې ولسوالۍ او پراخې ستراتیژیکې سیمې د امریکایانو او ګوډاګي رژیم د کرغیړنو منګولو څخه ازادې او د اسلامي امارت تر واک لاندې راوستي...

د باتورو او قهرمانو مجاهدینو په وړاندې د اجیر رژیم عسکر او وحشي اربکیانو د مقاومت روحیه له لاسه ورکړې او د جګړې نه د تیښتې لپاره دلارو او ګودرو په مندلو بوخت دي.

د اسلامي امارت مجاهدینو په داسې حال کې پخپلو کامیابو جنګي تاکتیکونو یادې سوبې ترلاسه کړې او په خارجي متجاوزو ځواکونو او دهغوی پر ګوډاګیانو یې دژوند کړی راتنګه کړې چې یرغلګر او اجیران دواړه په معاصرو وسلو او مهماتو تر خولې مجهز، سنبال او د پرمختللي هوایي ځواک له ملاتړه برخمن دي.

ثابته شوه چې دنړۍ هیڅ زبرځواک د عصرې برترۍ او ارتقاء په ځواک سره نشي کولی چې د کوم ازاد ولس له مغزونه دازادۍ مفکوره او روحیه وباسي، که دا شوني وه امریکا به په تیرو پنځلسو کالو کې افغان ولس له خپلې عقیدې او زادۍ له مسیره اړولی و.

داچې نن د ۱۵ کاله پرلپسې قربانیو ورکولو وروسته دهېواد په لر او برکې دازادۍ ولولې او احساسات څپاند دي ښیي چې افغان میړنی ولس له ازادۍ پرته په بل څه قناعت نلري او نه به ترهغه په ارام کیني چې یې له خپلې خاورې پردي دپخوانیو انګریزانو او شورویانو پشان رسوا او شرمنده شړلي نه وي.

بله داچې افغانانو دامریکایانو او دهغوی دګوډاګیانو له جنایتونو او ظلمونو تنګ راغلی نور په هره بیه چې وي خامخا خپل هېواد داشغال له تورو منګولو ازادول او پکې سوله او ثبات ټینګول غواړي په دې باب دافغان ولس هوډ او اراده قطعي او نه بدلیدونکې ده، ښکېلاکګر دي پوه شي چې دلته د دوی ټولې دسیسې له خاورو سره خاورې شوې افغانان د دوی له شومو ارادو نه په زور او زیر خبر او ورته ځیردي، هیڅکله به ونکړای شي چې داوږدې مودې لپاره ددي ازادې غوښتونکي ولس په سرنوشت لوبوته دوام ورکړي.

د سیاسي او پوځي چارو بیطرفه کارپوهان روان جهادي وضعیت ډا ډمن بولي او په اند یې که په راتلونکو میاشتو کې دمجاهدینو تهجمي بریدونه همداسې چټک دوام ومومي نورې ولسوالۍ او بسته ولایتونه به هم داشغال له پنجو نه ازاد شي او له نیمایې د زیات هېوادنه به داشغال تور څادر ټول شي، په دې جریان کې به یرغلګر امریکایان او دګوډاکي رژیم عسکر دداسې تندریزو جټکو او چیلنجونو سره مخ شي چې له مغزو به یې آن د ویتنام ترخې خاطرې هم هېرې کړي.



# د علماوو په عنوان د احتمالي جوړېدونکي کنفرانس په تړاو
# د اسلامی نړۍ علماء کرامو ته د اسلامي امارت پیغام

الحمدلله وکفی والصلوة والسلام علی عباده الذین اصطفی: وبعد!

قال الله تعالی في محکم التنزیل:

...إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ )فاطر:۲۸(

درنو علماء کرامو! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

څرنگه چې تاسو ته بهتره معلومه ده چې د نبوت د سلسلې له اتمام سره سم د ټول اسلامي امت د معنوي رهبرۍ، اصلاح او تنویر وظیفه دیني علماء کرامو ته سپارل شوې. او علماء کرام د امت د انفرادي اصلاح تر څنگ د مسلمانانو د لویو قضایاؤو په اړه هم دروند مسؤلیت لري.

د افغانستان د روان جهاد قضیه که څه هم ډېره پیچلې او له فهم لوړه مسئله نه ده، خو د اسلامي امت د لویو قضایاؤو له جملې څخه شمیرله کیږي.

تاسو ته معلومه ده چې پنځلس کاله وړاندې پر دې خاوره یو داسې اسلامي نظام حاکم و چې سیاسي واک د ټولنې د تر ټولو پاک، متعهد او مجاهد قشر یعني د دیني علومو د طلابو او علماء کرامو په لاس کې و، سپېڅلې شریعت نافذ و، حدود او قصاص جاري و، د أمر بالمعروف او نهی عن المنکر قرآني حکم پلی شوی او په سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او د ژوند په هره برخه کې هره فیصله یوازې د قرآني او نبوي ارشاداتو له مخې کیدله.

مگر د اسلام تاریخي دښمنانو، هغوی چې په تیرو څوارلس پیړیو کې یې همیشه له اسلام او په خاص ډول د اسلام له سیاسي حاکمیت سره دښمني پاللې، هغوی چې د صلیبي او استعماري جگړو پر مهال یې اسلامي امت ته نه جبیره کیدونکي زیانونه اړولي؛ د اسلام هماغه تاریخي غربي دښمنان دا ځل د امریکا په مشرۍ سره متحد شول، د اسلامي امارت په وړاندې یې د دښمنۍ موقف اعلان کړ، لومړی یې تبلیغاتي جگړه پیل کړه، وروسته یې د اقتصادي تعزیراتو او سیاسي کلابندۍ نقشه عملي کړه او په دریم قدم کې یې مخامخ زموږ پر خپلواک هیواد او اسلامي نظام پوځي یرغل وکړ.

ظالمو او متجاوزو غربي کفارو زموږ اسلامي نظام ونړاوو، زموږ خاوره یې اشغال کړه، موږ یې په خپل کور کې محکوم او مغلوب کړو. زموږ د ځمکې او فضا واک یې په لاس کې واخیست، زموږ په خاوره کې یې د خپلو نړیوالو نقشو د پلي کولو په مقصد لوی لوی هوایي ډگرونه او پوځي اډې جوړې کړې. زموږ د سرلوړي، عزتمند او مجاهد ولس د تذلیل لپاره یې زموږ له ټولنې تښتیدلي غرب میشته گوډاگیان را وستل او دلته یې واکمن کړل.

د امریکایي ظالمانه یرغل په وړاندې زموږ ولس که څه هم ډېر ځوریدلی، کړیدلی او ستومانه و؛ مګر د یو نیم زرو علماء کرامو لخوا ورته د جهاد د پیل فتوا ورکړل شوه، او د لاندې صریحو دیني ارشاداتو له مخې د جهاد د فرض کیدو حکم ورته متوجه وبلل شو.

ـــ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ ۚ وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ۚ وَلَا تُقَاتِلُوهُمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتَّىٰ يُقَاتِلُوكُمْ فِيهِ ۖ فَإِن قَاتَلُوكُمْ فَاقْتُلُوهُمْ ۗ كَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْكَافِرِينَ ﴿١٩١﴾ بقره

ـــ أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ( ٣٩)الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِم بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا ۗ وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٤٠﴾ سورة الحج ـــ

ـــ وَعَنْ أَنَس بن مالک رضی الله عنه،قال قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «جَاهِدُوا الْمُشْرِكِينَ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَأَلْسِنَتِكُمْ»[ رواه ابو داؤد ٢/٣٢ والنسائي ٦/٧ والحاكم ٢/٨١.]

د حنفي فقهې حکم ـــ وَفي الهندية (٢/٨٨) وَعَامَةَ الْمَشَايِخِ رحمهم الله تعالی قَالُوا: الجهادُ فَرْضٌ عَلَى كُلِّ حَالٍ غَيْرَ أَنَّهُ قَبْلَ النَّفِيرِ فَرْض كِفَايَة وَبَعْدَ النَّفِيرِ يَصِيرُ فَرْض عَيْنٍ وَهُوَ الصَّحِيْح، وَمَعْنَى النَّفِيرِ أَنْ يُّخْبَرَ أَهْل الْمَدِينَة أَنَّ الْعَدُوَّ قَدْ جَاءَ يُرِيْدُ أَنْفُسَكُمْ وَذُرَارِيْكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ فَإِذَا أُخْبِرُوا عَلَى هَذَا الْوَجْهِ افْتَرَضَ عَلَى كُلِّ مَنْ قَدَرَ عَلَى الْجِهَادِ مِنْ أَهْلِ تِلْكَ الْبَلْدَةِ أَنْ يَّخْرُجُوا لِلْجِهَادِ وَقَبْلَ هَذَا الْخَبَرَ كَانُوا فِي سَعَة أَنْ لَّا يَخْرُجُوا.

ـــ وفی المبسوط للإمام السرخسي (٢-١٠): ثم أمر رسول الله صلى الله وسلم بالقتال إذا كانت البداية منهم فقال تعالى ﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا﴾ [البقرة: ١٩١] أي: أذن لهم في الدفع وقال تعالى ﴿فَإِنْ قَاتَلُوكُمْ فَاقْتُلُوهُمْ﴾ [البقرة:١٩١] وقال تعالى ﴿وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا﴾ [الأنفال: ٦١] ثم أمر بالبداية بالقتال فقال تعالى ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ [البقرة: ١٩٧] د علماء کرامو د فتوا په اساس د اسلامي امارت مجاهدینو چې واحده رهبري یې لرله په لوړ عزم یې د کفر د تجاوز په مقابل کې جهادي قیام پیل کړ.

دغه جهادي مبارزه په تیرو څوارلسو کلونو کې له بیلابیلو سختو پړاوونو تیره شوه، تر دې چې یو مهال غربي یرغلګرو په یوه وخت د ١٣٠ زره په شاوخوا کې له خارج نه رواستل شوي مسلح پوځونه چې په ټانګونو، توپونو، الوتکو او پرمختللې تکنالوژۍ سمبال وو او په لسګونو زره داخلي غلامي ملیشې یې هم د مجاهدینو په ضد اکمال او جنګ ته را ایستلي وې او ټول یې زموږ په وړاندې په جګړه وګمارل. یرغلګرو سخت بمبارونه وکړل او تاریخي مظالم یې ترسره کړل خو له ټولو هڅو سره سره هم په دې ونه توانیدل چې زموږ د مؤمن ولس اراده ماته کړي.

لله الحمد د الله تعالی په نصرت او زموږ د مجاهد ولس د قربانیو په برکت په وروستیو کلونو کې د جګړې معادله معکوسه شوې ده، مجاهدین د پرمختګ او یرغلګر د شاتګ او تیښتې په حال کې دي، تر اوسه د لسګونو یرغلګرو هیوادونو بیرغونه رانسکور او ټول سرتیري یې په تیښته اړ شوي دي، یوازې امریکا، بریتانیا او څو یرغلګر هیوادونه

پاتې دي چې پر اشغال ټینګار لري، د دې هېوادونو هم لسګونه زره عسکر لـه افغانسـتانه پـه تېښـته مجبـور او یـوازې محدود شمېر پوځيان يې په کلابندو اډو کې وخت تېروي او لله الحمد د افغانستان د خاورې په اکثريت برخـه د اسـلامي امارت مجاهدين حاکم او د الله تعالی احکام پکې جاري دي.

مګر غربي اشغالګر که څه هم د جګړې په ډګر کې الله تعالی ذليل او مات کړل اما له خپل اشغالګر عـزم څخـه پـه شا نه شول، اشغالګرو د خپل غيرمستقيم اشغال د اوږدولو لپاره مختلفې بـديلې پروسـې پـه کـار واچـولې، چـې لـه دې جملې يې يوه مهمه پروسه د سولې تر نوم لاندې د مجاهدينو د تسليمۍ او دکابل غلامي ادارې تـه پـه جعـلي فتـواوو او قانوني بڼه ورکولو سره له جهاد څخه د منصرف کولو پروسه ده.

متجاوز دښمنان اوس کوښښ کوي چې د افغان ولس دغه جهادي قيام ته د ګمراه کوونکو تبليغـاتو، رواني جنـګ، استخباراتي دسيسو، جعلي فتواوو او د سولې په عنوان د سرو حربو په توسط ماتې ورکړي.

اشغالګرو اراده کړې چې مجاهدين مجبور کړي ترڅو له جهاده لاس واخلي، د تسليمۍ لاسونه پورتـه کـړي او هغـه اشغال ومني چې نه يې د منلو لپاره ديني او قرآني توجيه شته او نه يې د يوه انسان په حيث د چا ضمير او وجـدان منلـی شي.

د کابل نامشروعې ادارې ته د مشروع رنګ ورکولو او د سولې د ګمراه کوونکو تبليغاتو او تزويري هڅو په لړ کې دا ځل زموږ د دين، هېواد او خپلواکۍ دښمنان غواړي چې د نړۍ علماء کرامو او اسلامي هېوادونو ته په دوکه ورکولـو د سعودي عربستان په جده ښار کې او يا هم که سعودي حکومت موافقه ور سره و نکړي کوم بـل هېـواد کـې د اسـلامي نړۍ د عالمانوپه نوم او عنوان يو کانفرانس جوړ کړي. دکابل د غلامي ادارې د تش په نامه سـو لي شـورى اعـلان کـړى چې دغه کانفرانس د دوی په غوښتنه او ابتکار راغوښتل کيږي ترڅو له دغې غونډې څخه په اسلامي هېـواد افغانسـتان کې د کفري اشغالګرو وجود ته د غلطو معلوماتو په وړاندې کولو سره مشروعيت تر لاسـه او د مجاهـدينو برحـق جهـاد ناروا جګړه معرفي کړي، دوی کوښښ کوي چې په افغانستان کې د کاميابۍ پړاو ته رسيدلی مقدس جهاد په هغو نـاروا خونريزيو قياس او تعبير کړي کومې چې له شرعي طريقې او شرعي نصوصوخلاف د انسـانانو وينـې تويـوي او د جهـاد نوم بدوي.

موږ د ټولې اسلامي نړۍ علماء کرامو، په خاص ډول د افغانستان، پاکستان، هند، سعودي عربستان او نـورو عـربي هېوادونو علماء کرامو ته د اسلامي ورورولۍ او شريعت په رڼا کې دا پيغام رسول غواړو، چې:

تاسو ته بهتره معلومه ده، چې امريکايي طاغوت د نن عصر تر ټولو ظالم اشغالګر دی چې لاسونه يې زموږ د لکونـو مسلمانانو په وينو سره دي. او دا هم درته معلومه ده چې زموږ ولس يو مؤمن ولس دی، يو ځوريدلی او غريـب ولـس دی چې پر کور يې پرديو يرغلګرو هجوم راوړی او دا هم درته معلو مه ده چې زموږ د ولـس جهـاد د دينـي علـماء کرامـو پـه سرپرستي او هداياتو روان يو مشروع مقاومت او د ظالم اشغالګر په وړاندې د يوه مظلوم ملت د مقابلې وروسـتۍ هڅـه

ده. او تاسو په دې هم پوهیږئ چې د سولې تر عنوان لاندې د اشغالگرو او د هغوی د گوډاگیانو په ابتکار جوړیدونکې غونډې یوازې زموږ د ولس دمغلوبیت لپاره دائریږي او د اوسني غربي میډیا دا چل ول به هم تاسو ته معلوم وي چې که تاسو د غونډې په تالار کې هر څو د حق او شریعت خبري وکړئ یا په غرب تنقیدونه وکړئ هغه هر څه د تالار د ننه پاته کیږي او د باندې هغه څه د نړیوالو تر غوږونو رسیږي چې د امریکا په گټه او د مقدس جهاد او مسلمانانو په زیان وي او د مقدس شریعت په اصولو ولاړ جهاد هم تروریزم او ناروا جگړه معرفي کوي او حواله هم په عالمانو ورکوي؛ نو په همدې خاطر موږ تاسو ته یوځل بیا در په زړه کوو چې د ظالمانو په دا ډول پروسو کې ستاسو گډون، خدای مکړه، له هغوی سره یو ډول مرسته تلقي نه شي او خدای مکړه چې د دې وعید مورد ونه گرځئ چې الله تعالی فرمایي:

»وَلَا تَرْكَنُوٓاْ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ «ــ هود ١١٥ ). او یا لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم چې فرمایي: (من مشى مع ظالم ليعينه وهو يعلم أنه ظالم فقد خرج من الإسلام. رواه الطبراني).

قدرمنو علماء کرامو!

اسلامي امارت پر الهي نصرت په اتکاء سره باور لري چې د اسلام دښمنانو، لکه څنگه چې پوځي جگړې دوی ته برى ورنصيب نه کړ دغه ډول استخباراتي لوبې به یې هم د بریا مخ ونهویني. خو د اسلامي اخوت له مخې مو د اسلامي نړۍ له حکومتونو هیله دا ده چې دا ډول غونډو ته زمینه نه کړي مساعده، علماء کرامو ته پیغام دا دی، چې په دغه یاده غونډه کې گډون ونه کړئ او په دې اړه یوازې د کتاب الله، سنة رسول الله او د ایمان د غوښتنو له مخې پریکړه وکړئ او پرینږدئ چې په افغانستان کې میشت اشغالگر کفار ستاسو له گډون او ستاسو له نوم نه په استفادې په خپل شوم هدف کې کامیاب شي. که د مجاهدینو علني ملاتړ مشکل وي او نشي کیدلای؛ نو دا خو کیدلای شي چې د کفارو له دا ډول ناوړه دسائیسو نه ځان وژغورو او په فرمایشي غونډو کې یې گډون ونه کړو.

خدای دې وکړي چې موږ تاسو ته خپل درد او پیغام رسولی وي، ترڅو په آخرت کې د یو بل د حقوقو د نه مراعات کولو له امله له عذاب او عقوبت سره مخ نه شو.

وما علينا الا البلاغ، حسبنا الله ونعم الوكيل نعم المولى ونعم النصير

والسلام

د افغانستان اسلامي امارت

١٣/١١/١٤٣٧ هـ ق

٢٦/٥/١٣٩٥هـ ش ــ ١٦/٨/٢٠١٦م

# ستنېدونکيو مهاجرينوسره دافغاني پوليسوبيلګه ظلم!!

■ (بت شکن)

هسې خوهم افغان مهاجرين دهجرت تپاتوبي کې له حده زيات ځوريدلې او په اوښکو لانده ګريبانونه خپل هيواد ته پداسې حال کې ستنيږي، چې نه يې دهجرت اوجهاد هدفونه پوره شوي اونه ورسره چا ښه چلند کړی ،پرومبی په (۱۳۵۷ل) کال کې له کمونستانو او ورپسې له روسانو نه دهجرت لړۍاو بيا په (۲۰۰۱ز)کال کې دامريکايانو له يرغل څخه دهجرتونوسلسلې او دځان ژغورنې تلوسې ربښتياهم هغه ترخې شيبې او بوږنوونکې يادونه دي، چې زوريې هماغه چاته معلوم وي، چې په چا تير شوي وي ،خو هلته چې يوه سپيڅلې ارزو مضمره وه او ديوه مقدس هدف لپاره ددې ستونزو زغمل مقدر وو،نو چندان يې ځوک په ګاللو ډير نه پوهيدل او هرچا داجر وثواب په نيت پر ځان تيرول، خواوس چې خبره دې سرحد ته ورسيده ،چې نه هدف پوره شوی اونه هيواد کې داشغالګرو يرغل پای ته رسيدلی ،نو مهاجرين به دحال او قال په ژبه هرو مرو له ځان سره دازمزمه کوي، چې دادرونې نړۍ واکمن ولې دومره ظالمان دي، چې نه موخپل هيواد کې ژوندکولو ته پريږدي او نه موپردي يا اجنبي هيوادکې يوه هوسا زنده ګي شي زغملای شي !!آخر دا دنيا ولې ددې استبدادونوتوپاني سمندر دی او داظالمان پکې دظلم کښتۍ په ډيره بي رحمۍ ځغلوي ! او .....او ......

دادومره اوږده مقدمه مې ځکه دې موضوع ته وکښله چې افغان مهاجرين داسلام او جهاد علمبرداران دي او دوخت له ظالمانو نه يې خپل خوږ کلی او کور پريښی او په پرديسۍ کې يې ډير تکاليف تير کړي ،خو اوس ديوه بل ازمېښت سره مخ کيدونکې دي،له يوې خوا ورته دهجرت تپاتوبی ځای نه ورکوي او دبلې خوا ورته دهيواد غلام واکمن په حقارت او سپکه سترګه ګوري ،نه يې خپل کلي کې ځای کيږي او نه ورته دکابل ګوډاګيان په حقه حق قايليږي ،دهرې بلا ټکه نن په مهاجر راپريوزي،مناسب داسې وه، چې بيرته ستنيدونکيو مهاجرينوته دومره تود هرکلی کيدای ،چې نړۍ کې يې ساری نه ليدل کيدای او اوسنيو چارواکيويې دومره ګرم استقبال کولای، چې له امله يې دمهاجرينو دخيمو اواغزنو دښتو ترخې خاطرې هيرې شوی او له ځانه سره يې ښې خاطرې ساتلای وی ،خو متأسفانه خبره دلته بدله او معکوسه ښکاري او داخبرې هسې خيال بافي معلوميږي ،خبره مې ننګرهار کې دافغاني پوليسودظلم او استبداد کوله ،چې دې وروستيو کې نړيوالو رسنيوداسې يو ويرجن خبر ورکړ چې :

د ننګرهار ولايت په روداتو ولسوالۍ کې پوليسو په هغو کډوالو ډزې کړي، چې له پاکستان څخه راستانه شوي او د يادې ولسوالۍ د حصارشاهي په ډاګ کې يې خيمې وهلې وې.

د سيمې خلکو رسنيو ته ويلي چې يو شمېر کورنۍ تازه له پيښوره خپل وطن ته راستنې شوې وې او د سرپناه د نشتون له امله يې د حصارشاهي ډاګ د غره په لمن کې خيمې وهلې وې.

د خلکو په وينا، د روداتو ولسوال «حضرت خان خاکسار» د دې پرځای چې له نوموړو کډوالو سره مرستې

وکـړي، پولیسـو تـه امـر کـړی، چـې د راسـتانه شـوو مهـاجرینو پـه خیمـو ډزې وکړي، چې له کبله یې ۲ تنه مړه او ۷ نور ټپیان شوي دي.

راستانه شوي مهاجرین د ننګرهـار ولایت مقام مخې ته راغونډ شـوي او پـه داسې حال کې چې دوه تنه مړي یې هم له ځـانونو سره راوړي وو، لـه ولایتـي چـاروا کو څخـه د عـدالت او انصـاف غوښتنه کوله .

دډیرې خندا وړ ده چې د ننګرهـار زورواکـې د بـې سرپنـا کـډوالو لخـوا د حصارشاهي په ډاګ کې د خیمـو وهـل د «ځمکـې غصـب» بـولي او زیـاتوي چـې پولیسـو غوښـتل نومـوړی ډاګ د «غاصبینو» له منګولو وژغوري نو ځکـه نښته رامینځته شوه.

خـود ننګرهـار دامنیـه قومنـدانۍ د رسـنیز دفـتر مشرـ «حضرـت حسـن مشرـقیوال» بیـا پـه مهـاجرینو بـل الـزام لګوي او وایي چې پولیسو له ځان څخـه د دفاع په خاطر هوایي ډزې کـړي او پـه متقابلو ډزو کې دواړو خـواوو تـه مـرګ ژوبله اوښتې. خو نوموړي دا نه دي ویلي، چې کډوالو وسلې له کومه کـړې، ترڅـو پرې له پولیسو سره مقاومت وکړي.

رسـنۍ لیکـي چـې : د ننګرهـار ولایت مقام مخې ته یو تن راستون شـوي مهاجر رسنیو ته وویل چې پولیسـو پـرې په ډیرې بې رحمۍ ډزې وکړې، ۲ تنه یـې ووژل، ۷ یې ټپیان کړل او ۱۲ تنـه یـې لـه ځان سره بیـولي دي. نومـوړي لـه ولایتـي چارواکو وغوښتل چې نیول شـوي کسـان بیرته راخوشې کړي او د ټپیانو په درملنـه کې ورسره کومک وکړي.

راپورونـه وایـي چـې پولیسـو نـه یوازې پـه راستانه شـوو مهـاجرینو ډزې کړې بلکې هغوی یې وهلي او ډبـولي هـم دي. د سیمې اوسیدونکي وایي چې له ډزو وروسـته پولیسـو دوه تنـه زخمیـان د پایوازانو په ملتیا د روغتـون پـه پلمـه پـه رینجر کې سپاره کـړل، خـو کلـه چـې د پولیسـو رینجـر پاخـه سـړک تـه ورسـېد پولیسو د زخمیانو د پایوازانو په وهلـو او ډبولو لاس پورې کړ.

د عینـي شـاهدانو پـه وینـا، یـادو کسانو په داسې حال کې چې د پولیسو تر وهلو لاندې پراته وو، چیغې وهلـې چـې «له یوې خوا مـو پاکسـتان نـه پرېـږدي او راشړي مو، او له بلې خوا مو د خپل هیواد پولیس راباندې ډزې کوي............«

پـدې توګـه نـور راپورونـه ددې څرګندونـه کـوي ،چـې همداسـې پېښـې نورې هم دې سیمې کې شوي او دمهاجرو شـهیدانو جسـدونه یـې دجـلال آبـاد ښـار دولایت مقام مخې تـه داعـتراض پـه ډول راوړي ،خو چارواکې پـه ډول ډول پلمـو ځان له مسؤلیته خلاصـوي اومجـرمین نـه نیسي اونه ورته سزا ورکـوي ،چـې داتـول ددې شهادت ورکـوي ،چـې اصلا اوسـنی افغاني واکمن افغان مهاجرین پـردي بـولي او دشک په سترګه ورته ګوري .

داخو به نه یادوو!!

چې دهجرت په دیار کـې تراوسـه نـــړدي (۲۰۵۰۰۰۰)دوه نـــیم میلونـــه مهاجرینو ته دکابل اداري تراوسـه پـورې نه انتخاباتوکې دګډون حق ورکړی او نـه ورتــه ددې تــش پــه نــوم حکومــت لخوادمعـــارف او روغتیاپـــه شـــمول نوروبرخو کې مرسته کړې ،بلکـې ددوئ ټول اجتماعـي او مـدني حقـوق یـې تـرې سلب کړي اودیوه افغاني تبعې په حیثیت ورته ندي قایل ،کله پرې دترهګرۍ ټاپې او کله پرې دنا امنیتۍ مهرونه هم لګـوي ،خـــو اوس چـــې مهـــاجرینو تـــه نـــور ګاونډیان داوسیدلو اجازه نـه ورکـوي او هرچا سره هیواد ته دعودت دبیرته تـګ تلوسه په څپـو ده، نودکابـل پـه اصـطلاح منتخبې اداري ته نه ښایي ،چې دپولیسوله لارې دا بیچاره ګان یا شهیدان اویا ټپیان کړي ،داددوئ دمرستو وخت دی او دایـې داړتیـــاوو دپـــوره کیـــدلو ورځـــې دي ،دمهاجرینو دنړیوال قـانون غوښـتنه هـم داده، چې خپل بشپړ حقـوق خپـل کـړي اوواکمـن یـې خپلـه غیـړ کـې ونیسـې ،کورونه او کلي ورته آباد اودخولې ډوډۍ ورسره نیمه کړي ،نوهله به یې څـه ناڅـه دوطنداري او افغانیت پـالنې څـه حقـوق ورته ورکړي وي !



# مجاهدینو مه خپه کېږئ!

شاهد (غزنیوال)

د جهــاد لاره د قربــانـۍ او سربښندنو لاره ده .

پـه دې لاره کـې سـتړیاوې ، ستوماني. ډېرې خو مایوسي ورکې ځای نه لري.

د جهــاد دلارې ســتونزې او مشـکلات د دې لارې د لارویـانو د حقانیت لپاره تر ټولو ستر محک دی چې د هغوی د عـزم او ارادې کچه وربانديې پیژندل کیږي.

خدای تعالی د جهادي لارې د لارویانو د ازمایښت په اړه داسې فرمایي:

وَلَنَبْلُــوَنَّكُمْ حَتَّــىٰ نَعْلَــمَ الْمُجَاهِدِينَ مِنكُمْ وَالصَّابِرِينَ وَنَبْلُوَ أَخْبَارَكُمْ. (۳۱ محمد)

ژباړه: او تاسو به حتما أزمویـو تر څو ستاسي له منځـه مجاهـدین او صــبرکوونکي معلــوم کــړو او ستاسي حالات و أزمویو.

کـه مـونږ د انساني تـاریخ پـه اوږدو کـې د جهـاد او دعـوت د لارې بهیرتـه وگـورو نـو ډیـر انبیـاء علیهم السلام ، صـالحین او داعیـان بـه وويـنو چـې هغـوی خـپـل ټـول ژوند له باطل سره په مقابله کې تیر کـړي ، هغـوی ډیـرې قربـانـۍ ورکـړې، ډیـرې سـتونزې پرځـان منلي خو له دې هرڅه سره سره یي نه خپل مسیر بدل کړي او نه یي د ستونزو لـه وجـې مـایوسي ښکاره کړې. انبیاء علـیهم السلام د خپـل دعـوت پـه لاره کـې وژل شـوي ، تعذیب شوي ، تبعید شوي ، خو نه له خپل مسیره منحرف شوي او نـه هم د دعوت له پایلو مایوسه شوي.

د جهاد او دعوت په لاره کـې دغـه ډول ثبـات او اسـتقامت یـو ځانگړي امتیاز دی چې الله تعالی هغو کسانو ته ور نصیب کـړی کـوم چې هغوی یې د رجال (نارینه وو) په صفت موصوف کړي.

الله تعالی په دې اړه وایي:

مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُم مَّنْ قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُم مَّنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا. ( ۲۳ الاحزاب)

ژباړه: پـه مؤمنانو کـې ځینـې داسې (نران ) سړي هـم شته چـې پـه کـوم شي یـې لـه الله سره لـوز کړی و هغه یې ریښتیا کړ. نو ځینو خو یې خپل نذر پوره کړ او ځیني یـې لا انتظار کـوي او هـیڅ کـوم بدلون یې پکي ونه کړ.

له شـکه پرتـه چـې انسان یـو کمـزوري او ضـعیف مخلـوق دی ، کلـه کلـه د مشکلاتو او سختیو لـه وجې له وارخطایي سره مخ کیږي، تردد او تزلزل یي زړه ته لاره کوي خو هماغه وي چـې اللهـي نصـرت وربانــدې را ښــکاره او ټولــه وارخطـایي او تزلـزل یــي بانـدې ورک شي.

خدای تعالی په خپل سپیڅلی کتاب کې د دغو کسانو له حال نه مونږ ته داسې خبر راکوي:

أَأَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ ۖ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّىٰ يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَىٰ نَصْرُ اللَّهِ ۗ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ. البقره (۲۱۴)

ژباړه: ايا داسې مو ګڼلې چې جنت ته به له هغه مخکې داخل شئ چې لاړومبنيو تيرشووخلګو غوندې حالت نه وي دربانـدې راغلی؟ هغوی ته کړاونه اورنځونه رسيدلي و او آن دومره لړزول شوي وو چې هماغه رسول او ورسره مؤمنانو به ويل د الله مرسته به کله وي ؟ (الله وويل) خبر اوسی د الله مرسته نيږدې ده.

په قرآن کريم کې د جهاد او دعوت دلارې لارويانو ته د فتوحاتو او برياليتوبونو په نسبت د مشکلاتو او کړاونو ډيره ياد ونه شوې، او دا واقعيت د قرآن کريم په هغو مبارکو سورتونو کې چې د جهاد بيان ورکې ډير شوی په وضاحت سره بيان شوی.

په آل عمران ، الانفال، التوبة او محمد سورتونو کې د جهاد ، شهادت او د الله په لاره کې د مشکلاتو ګاللو او سرښندنو ډير تذکر شوی ، خو بالمقابل يې د فتح او نصرت يادونه په ډيرو محدودو ايتونو کې شوې او همداراز د فتح يوه ښکاره مثال او هغه هم د هجرت په اتم کال د مکي مکرمې فتح ده چې الله جل جلاله هغه په فتح مبين (ښکاره فتح ) سره ياد کړی .

إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا. (۱الفتح)

ژباړه: بيشکه مونږ تاته برى درکړ برى څرګند.

د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د رسالت په لومړيو کې پر اصحاب کرامو په ډير مشکلات راغلي او هغوی په نبي عليه السلام باندې د ايمان راوړلو په جرم د مشرکينو لخوا ډير ځورول شوي.

د احد په غزوه کې ۷۰ نفره صحابه کرام يه شهادت رسيدلي ، د احزاب په غزوه کې پر رسول الله او ملګرو يې ډيرسخت حالات راغلي، داسې چې قرآن کريم يې د سختۍ او آزمايښت بيان کړی :

وَإِذْ زَاغَتْ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا (۱۰)هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالاً شَدِيداً.(۱۲) الاحزاب

ژباړه: او چې سترګې کږې خړې شوې او زړونه ستونې ته راورسيدل او په الله موراز راز ګومانونه وکړل. هماغلته مؤمنان وازمايل شول او په سختو خوځولو سره وخوځول شول.

د جهاد د لارې ستونزې او مشکلات يواځې د صدراسلام په دورې پورې نه دي محصور؛ بلکې هغه د جهادي لارې له هغو تلازماتو څخه دي چې د تاريخ په اوږدو کې د حق دلارې لارويان تل ورسره مخ وي.

د حق د لارې ستونزې اومشکلات په يوه ځانګړې منزل ختميږي ..

هو! دا مشکلات هغه وخت پايته رسيږي چې د دې لارې پر لارويانو په عالم اسباب کې د نجات او خلاصون ټولې لارې وتړل شي، يواځې دوی او د الله تعالى نصرت سره پاتې شي بس په همدې وخت کې الله تعالى د همدې مغلوبو




بندګانو مدد کوي او هغوی ته پر دښمن غلبه ورکوي ..

وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ. (الروم ۴۷)

ژباړه: او له مؤمنانوسره مرسته پرمونږ حق ده.

د بیلګې په توګه حضرت ابراهیم علیه السلام ته هغه وخت خدای د نمرود له اوره نجات ورکړ چې د ده او اور تر منځ هیڅ فاصله نه وه او نه یې په مادي لحاظ د دژغورنې امکان لیدل کیده.

موسی علیه السلام ته هغه وخت خدای د فرعون له شره نجات ورکړ چې دی یې د رود نیل تر غاړې ور ورساوه ، خو په رودنیل باندې په ګډیدو سره خدای موسی علیه السلام او د هغه پلویانو ته نجات ورکړ او فرعون یې په رود نیل کې غرق کړ، همداسې عیسی علیه السلام او زمونږ ګران پیغمبر حضرت محمد علیه السلام چې کله یې د مشرکینو له ظلمه د حراغارته پناه یووړه او مشرکین د غار تر خولې پورې ور ورسیدل ، خو هلته وربانديې الله تعالی مشرکین ړانده کړل او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او دهغه ملګري ته یې نجات ورکړ.

نو مجاهدینو وروڼو!

باید دجهاد د اغزنې لارې تر وروستي منزل پورې ثابت قدمه ، صابر او د الله په نصرت باوري اووسو .

نن زمونږ جهادي بهیرهغې مرحلې ته رسیدلی چې په عالم اسباب کې یې د الله له نصرته پرته بل هیڅ مادي مددګار نشته ، خو همدا قوي مددګار ، مقتدرخدای جل جلاله به حتما همدغه بهیر پر قوي دښمنانو داسې کامیابوي لکه چې تر دوی وړاندې یې د حق دلارې نور لارویان د نړۍ پر مستبدو طاغوتیانو کامیاب کړي.

مونږ او تاسي ټول باید د الله پر دغې وعدې متیقن اوباوري واوسو چې فرمايي :

وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ.(۱۳۹ آل عمران)

ژباړه: مه سستیږئ او مه خپه کیږئ او همدا تاسي برلاسي یاستئ که مؤمنان اووسئ.



# رسنۍ به رسوا شي !!

دعابد لیکنه

هسې خو درسنیو او مطبوعاتو دنوم له اورېدو سره باید هیچاته ددې شک نه وای پیدا چې مطبوعات اورسنۍ به دچا پره وکړي اوپه طرف کې به واقع شي، ولې اوس خبره تردې رارسېدلې چې ډېری مطبوعات اوخپرونې د 'خپلواکه، بې پرې، آزاد، مستقل، بې طرف او نور' تکي له ځان سره لیکي، داځکه چې اوس دخپرونو خپلواکي ترسوال لاندې راغلې اوپه افغانستان کې خو هره خپرونه له وړایه معلومه ده چې دچا په طرف ده او دچا نظریې خپروي ، دالاځه چې په نړیواله سطحه دمشهورو رسنیو پټه ننګه هم اوس ډېره رسوا شوې اونور یې خپل زغم له لاسه ورکړی.

دبی بی سي درادیو او جال په پاڼه ډېر ځله داعنوان راغلی چې ... 'فلانۍ ولسوالۍ له طالبانوبېرته ونیول شوه' په داسې حال کې چې دطالبانو دنیولو خبر یې نه وي ورکړی، بلکې په معکوس ډول یې داسې اعلانوي (تازه بېلګه): 'د هلمند ناوې ولسوالۍ نیولو لپاره د طالبانو برید 'ناکام شوی'' اوداسې نور ډېر مثالونه ...

''دطالبانو دخبرونو پرخپرولو بندیز ولګید، نشر اخبار طالبان تحریم ګردید....''

ډېر شرموونکي تکي دي!! حیرانتیا خو په دې ده چې دغسې لنډې اوعصباني پرېکړې په یوه اداره کې څنګه رامنځته کیږي، چې دپرېکړې حق دې هم پکې دیوه شخص دنظر مولودنه وي، بلکې دډېرو غړو اولیکپلاوي دژورو سنجشونو نه وروسته راپیداکیږي؟ سړی نه پوهېږي چې نتیجې ته یې ولې نه دي متوجه؟!! ددرواغو منزل خو لنډ وي، همدا اوس چې طالبانو دناوې ولسوالی ونیوله او توله دنیا پرې خبره شوه بی بی سی ته به څه ورپاتې وي او کومه توجیه به ورته کوي؟

په کابل کې دطلوع پرموبي ګروپ له برید سره پر کورنیو رسنیو سربېره بهرنۍ رسنۍ هم چې مستقلې یادېدلې دمقاطعې له غږ سره همغږې شوې، سره ددې چې له مخه یې هم چندانې خپله خپلواکي نه ده ساتلې اوپه ډېر جسارت یې خبرونه په اړولي بڼه نشرکړي، ولې داچې مطبوعات اوخپرونې دخپلواکۍ اوبې پرېتوب دعوه لري، باید ددې په ځای چې دتحریم له چیغې سره همغږې شي ددې برید په انګېزه یې ډېر فکر کړی وای!! چې ولې طالبان دمطبوعاتو په وړاندې دفزیکي غبرګون په ښودلو مجبور شول؟ خو داسې ونه شول اولګیادي لاپه هماغسې ړانده تقلیدپسې روان دي، دطالبانو دوروستیو هېښوونکو بریدونو په وړاندې یې ډېره شرموونکې ګونګتیا خپله کړې ، په شمال کې په کندز، بغلان اوتخاراوپه جنوب اوجنوب لوېدیځو سیموکې په پکتیا، پکتیکا، غزني، فاریاب ، اروزګان اوهلمند کې په دې وروستیوکې دولت ډېرې سیمې له لاسه ورکړې اوډېر نظامیان یې ووژل شول، خو کورنیو او بهرنیو مطبوعاتو ددې په ځای چې واقعیتونه خلکوته ورسوي یواځې ددولت کاذبې دعوې خپرولې .

که دوی پخپلو دې ډول اعمالو له طالبانو سره دښمني ښیي یایې ځینې یواځې په دې کړنو سره کولای شي له مختلفو کړیو څخه مادي ګټې ترلاسه کړي، شاید داګټې یې لنډې وي او نه یواځې داچې دخپل رسنیزمسؤلیت په وړاندې به پاتې راځي، بلکې ډېرې معکوسې نتیجې به ترلاسه کړي اوپه خلکوکې یوڅه حیثیت چې په ډېرو خواریویې کسب کړې وي له لاسه ورکړي اوبالاخره به له فلج کېدو سره به مخ شي ، مونږ ډېرې داسې ورځپاڼې او خپرونې په کابل کې ولیدې چې له بېلابېلو لارو

يې ولسي محبوبيت ترلاسه کړی و، ولې دخپل رسنيز مسؤليت په وړاندې يې ددغه ډول ناوړه کړنو په ترسره کولو سره هرڅه له لاسه ورکړل اونن يې نوم هم څوک نه يادوي .

داهم په ځای ده چې ډېر ځله ددولت له تهديدونو سره هم مخ کيږي اوپه وار وار دملي امنيت له خوا رسنيوته په رسمي ډول ګواښونه شوي، ولې يوه رسنی چې دوطنپالنې او ملي احساس په اساساتو خپل بنيادونه بنا بولي؛ نه ښايي چې د (ديموکراسی !! اودبيان دآزادی !!) په ماحول کې ! بيا هم دسانسور په دغسې فضا کې داختناق ژوند تېرکړي او ددغه ډول حالت په وړاندې هيڅ غږ نه پورته کوي، لومړی خو په کار ده چې ددغسې حالت په وړاندې په کلکه مبارزه وکړي اوکه نه نو لااقل ددواړو طرفينو ترمنځ تعادل خو خامخا وساتي، په تېره بيا داچې دخپلواکی دعوه ولري او خپلې کړنې دآزادی دبيان!! له مخې وبولي !!.

خومونږ چې ګورو ډېری رسنی په افغانستان کې ددغه انحراف ترڅنګ دپردي فرهنګ اوکلتور په خدمت کې دي داسلامي احکامو څخه ډېرلرې دعريانی اوفحاشی خپرولوته يې کاروبلی دی اوځينې بيا يواځې ژبنې تعصبونه رامنځته کوي اوله دې لارې دافغانستان راتلونکی ثبات له خطر سره مخ کوي، دطالبانو په وړاندې درسنيو د' مور اوميره' سلوک اودا ډول ناوړه کړنې به طالبان دېته مجبوروي چې بالمثله اقدام وکړي او ديوه مسؤل او واکمن جهت په حيث پرېنږدي چې ددوی په هيواد کې منحرف حرکتونه خپل انحراف ته دوام ورکړي، داجرئت به دوی ته پخپله همدغه ډول رسنی اومطبوعات ورکوي چې په خپله تګلاره او مسؤليت کې خپلومطبوعاتي اصولو او رسنيزو عهودو ته متعهد او ژمن نه وي، بيا به يې دطالبانو په وړاندې دبيان دآزادی او نورې ګېلې ډېرې بې ځايه وي .

طالبان اوس په افغانستان کې هغه قوت او حقيقت دی چې سترګې ترې نه شي پټېدلای، دچا زړه يې غواړي اوکه يې نه غواړي هغوی اوس دافغانستان پرډېری برخه مسلط دي او له دې سره په څنګ کې مهم ټکی لا داچې ولسي ملاتړ هم له دوی سره شته ، په دې اوس ټوله نړی سلاده چې نور بايد اسلامي امارت ديوه داسې جهت په توګه ومني چې دافغانستان پر خاوره او ولس يې بالفعله اوبالقوه نفوذ موجود دی، نور نه ښايي چې دنورو اشغالګرو په غلطو سياسي تګلارو تېروېستل شي،بلکې دځمکنيو واقعيتونو له مخې له افغانستان سره سياسي اړيکې ترسره شي، همدغه راز بايدکورنی اوبهرنی ټولې مطبوعاتي کړی او رسني له همدې سياسي فهم نه په الهام خپله يو اړخيزه تګلاره بدله کړي ، ترڅو به په حقايقو او واقعيتونو پرده اچول کيږي او ترڅومره وخته به دافغانستان له خلکو واقعيتونه پټ شي؟؟

لکه څنګه چې په دې نوين قرن کې دمطبوعاتو اورسنيو سير ډېر ګړندی او زيات پرمختګ کړی په همدومره اندازه اوس خلک هم په هرڅه پوهيږي او ددوی دغولونې هڅې اوس ډېرې کارنده نه دي، بل داچې پخپله درسنيو ډولونه هم تردې رارسېدلي چې ټول يې تريوه اداره او ځانګړيو کړيو نه شي منحصرکېدلی، خواله رسنی چې ولسي مطبوعات يې بللی شو ډېر ژر هغه څه را روښانه کوي چې په دولتي اونيمه خپلواکه رسنيوکې يې دپټېدو هڅه شوې وي، نو له واقعيتونو او ځمکنيو حقايقو مخ اړول پرته له دې چې رسنی له رسوايی سره مخ کړي بله کومه نتيجه نه لري، ښه به داوي چې دافغانستان خلکوته هغه څه ور ورسول او ښودل شي چې په واقعيت بنا وي، همدا د رسنيزو اصولو اصل دی اوله همدې ټکي درسنيو اومطبوعاتو تعريف رامنځته شوی، طالبان هم له رسنيو دا نه غواړي چې زمونږ پلوي وکړئ اوزمونږ ګټې په پام کې ونيسئ،بلکې يواځې دومره وايي چې رسنی بايد تعادل په پام کې ونيسي او واقعيتونه خپاره کړي اوبس.

# اشرف غني دروان جهاد نسبت ولې ګاونډي هیواد ته کوي !!؟

خلیل ـ عزیز

اشرف غنــي ، پــه دې ورسـتیوکې لــه پاکسـتاني ژورنالیسـت (سـلیم صـافي) سره دترسره شـوي مرکـي په اوږدو کې ، چې دهغه هیواد (جیو تلویزون ) خپره کړه پــه ډیـرې سـپین سـترګي پـه حقـایقو دخـاورو اړولـو هڅه وکړه ، ځان یې دافغانستان منتخب ولسمشر ـ یادکړ ، داشغالګرو امریکایانوهرډول وحشت یې دافغـان مسلمان ولس پـه وړانـدې روا وبالـه اوکـوم سـپیڅلي مقاومـت او جهاد چې دمجاهـدو افغانانوپـه پـاکو قربـانیو اوسرښـندنو پرمخ ځي هغـه یـې دګاونـډي هیـواد جنګ او مداخله وګڼله !!

ترټولو ړومبی خبره چې لکه لمر روښانه اوبـرالا ده اودافغانستان دهر فرد او وګـړي سرپـرې خـلاص ده هغه داده چې دکابـل رژیـم هیڅکلـه دافغانـانو پـه اراده او خوښه منځته ندی راغلی اونه یې واکمن دافغانانو له متن او مـنځ نـه راپورتـه شـوي څیـري دي ، بلکـي دغـه رژیـم دامریکـادبهرنیو چـارو دوزیـر (جـان کیـري ) پـه خاصه طرحه او دامریکا دملی امنیت دیـوې استخباراتي پروژې په شکل کې جوړ او رامنځته شو، چې جوړښت او ټاکنه یې هـم دجـان کیـري کـار وو اوچلـول او اداره کول یې هم دهغه په واک او صلاحیت کي دي .

که نور مثالونه یوې خواته پریږدو همدغه دوه اونۍ مخکـي چـې کلـه دوارسـا په ناسـته کـې داشرف غني دګډون خبره راغلـه ، ډاکټرعبـدالله هـم غـږ اوچـت کړچـې زه لـه چـا کـم یـم زه بـه هـم پـه غونـډه کـې ګـډون کـوم ، ځکـه جـان کیـری دافرمـان ماتـه هـم راکـړی چـې تـه لـه اشرف غنـي سره برابـر حقوق لري ، اشرف غني که هرڅومره دعبدالله دممانعت خبره وکړه ، چې په اصطلاح ولسمشر زه یم اوتنها زه باید پــه ناسـته کــې برخــه واخلــم ، خــودواړو بــالاخره فیصله په دې وکړه چې موضوع به خپل بادار (جان کیري ) ته لیږي هغه چې څه پریکړه وکړه هغه به منو ، هماغه وو چې بادار یې فیصله ورکړه چې دواړه دوارسا غونډې ته ورشي ، ولې دناستي میز به مو یو وي .

نویوڅوک چې ځانته ولسمشر ـ وایـي او هغـه ددې صــلاحیت او جـرات نلـري چـې پـه نړیوالـو غونـډو کې دخپل هیواد استـازیتوب پـه کـوم کیفیـت او شکل ترسره کړي او ترهغو داستونزه نشي حل کولای چې جان کیـري پکـې خبـره ونکـړي ، نـو تردغـه ذلیـل، رسـوا او تالیځتي واکمن به دافغانستان په تاریخ کې نه راغلی وي اونه به راشي ؟

اشرف غني له جیو نیوز سره په مرکه کې ویـلي ، چې امریکایان دافغانستان په جګـړه کـې دخیـل نـدی ، بلکـي زمـونږ صرف حمایـه کـوي ، ولـې ورسـته بیـا وایی چې که امریکایان په کومه جګـړه کـې برخـه اخـلي حتما له ده نه اجازه ترلاسه کوي .

عجیـب منطـق او عجیـب قضـاوت !!! کـه دغـه خبره داشرف غنـي کـوم ویانـد کـړې وای ، نوسـړي بـه ویـلي وو چـې هغـه ټیـټ پـوړی کـس دی ممکـن معلومـات بـه ونلـري ، خـو چـې یوڅـوک ځانتـه دنړۍ دوهم مفکر وایی ، جمهور ریس اودپوځ سراعلی قومندان رسـتاړي هـم لـه خپـل نـوم سره تـړي هغـه چـې دغسي ببولالي وایي او دټول افغان ولس په سترګو کې

خاوري وراچوي نه پوهيږو چې دغه امريکايي نانځکي ته بل کوم لقب او نوم ورکړو ؟

کله چې اشرف غني دواک په امريکايي ګدی ک يناستلی چې نيږدي دوه کاله پوري کيږي دامريکايي بمباريو ، امريکايي چاپو او مخامخ جګړو له امله شاوخوا دری زره ملکي افغانان وژل شوي اوپه زرګونو تنه بګرام ته وړل شوي اوشکنجه شوي

اوس پوښتنه داده چې دغه کار به يا امريکايانو په خپله ترسره کړي وي ، نو ته اشرف غني چې ځانته دافغانستان ولسمشر وايي اوپه لوړه کې دي هم سوګند اخيستی چې دخپلو اتباعو حقوق به خوندي کوي او په هرقيمت به ورنه دفاع کوي ، ايا تا کومه ورځ له امريکايي قومندان څخه پوښتنه کړې چې تاسي ولي زمونږ ملکي وګړي په نښه کوی ، ولې زمونږ روغتونونه ، جوماتونه، ودونه، جنازي او عامه ځايونه دډرون هدف ګرځوي او يايې بمباروی؟

هغه په کندوز کې چې امريکايانو دبې سرحده ډاکټرانو روغتون په بل مخ واړاوه او لسګونه عام افغانان پکې ووژل شول، له عاملينو سره يې تاخه وکړل اوبيا امريکايانو له هغې پيښې اوغميزي سره څه ډول چلند وکړ، چې دايې يوادنی او وړوکی مثال دی ؟

اوکه چيري ته وايي چې هر بريد امريکايان ستا په خوښه او اجازه ترسره کوي ، نو بيا خو خبره خلاصه شوه ، دافغانانو درجه اول قاتل ته يې ،که وخت يې راغی افغانان به دالله تعالی په مدد ددغه يوه يوه جرم اوقتل حساب خامخا درسره کوي ؟

اشرف غني ،له سليم صافي سره دمرکي په اوږدو کې بار بار ددې خبري کوشش کړی چې دخارجي لښکرو او اشغال په وړاندې د روان جهاد افتخار ګاونډي هيواد پاکستان غاړي ته ور واچوي

په دې خبره هم دبادرکو افغانانو سر خلاص دی ، کچيري امريکايان او ګوډاګی رژيم يې دروان جهاد نسبت پاکستان ته ونکړي اوپاکستان په دغه عظيم مقاومت کې دخيل ونه ګرځوي نو امريکا به افغانانو او نړۍ ته دهغه سوپرپاور لويي دعوه اوشعار په باب چ ې لری يې څه ځواب وايی ، چې مجاهد او فاتح طالب په څومره عجيب شان له امريکايي طاغوت نه کوکاري پورته کړي او ټولي جنګي ستراتيژياني اوديونيم تريلينون ډالرو لګښتونه يې ورته خاوري ايري وګرځول .

نواشرف غني او امريکايان ددې لپاره چې دمجاهدينو په نه ماتيدونکي ځواک او جهادي صلاحيت پرده واچوي او په هرميدان کې خپلې رسوايی او ماتي پټي کړي ، نو له ډيرې اسانه او بې مصرفه ټاپي او مهر څخه دضرورت په وخت کې کار اخلي چې ووايی دي او فلاني کار کې دپاکستان لاس دی !!

مونږ اشرف غني او امريکايانو ته وايو چې اسلامي امارت اوس له ډيرو سختو حالاتو اوشرايطو اوړيدلی اوستاسي له ډول ډول حربو که هغه جنګي وي که سياسي بريالی ترې راوتلی ،لدې ورسته چې تاسي په بې مفهومه او بې نتيجې لارو چارو فکر کوی اودروان جهاد جرړي بل چيرته لټوی اوخيال موداده چې څه به ترلاسه کړی، کلک باور ولری چې په دې کار سره ياځانته دوکه ورکوی او يادافغان ولس په سترګو کې د خاورواچولو هڅه کوي، چې په دواړو حالاتو کې به مو هغه دچا خبره مختور او تلي شني وي.

# رښتیا!

## عمري بریدونو اوفتوحاتو څه په ډاګه کړل؟

**بشیر**

په ټول هېواد کې د اشغالګروځواکونو د شتون پرضد د باتورو او ننګیالیو مجاهدینو له لوري عمري عملیات له تمې او توقع نه هم زیات بریالي اوموفق روان دي، چې په نتیجه کې یوشمیر ولسوالۍ او سیمې دمجاهدینو لخوا فتحه اونیول شوي.

دکامیابو بریدونو په لړ کې په پلازمینه (کابل) کې دنهمې حوزې په مربوطاتو کې دخارجي ځواکونو په هغه مرکز [نارنګیټ هوټل ]چې هغوی تري دمیلمستون سربیره د استخباراتي او لوجیستکي مرکز په توګه هم کار اخسته دڅلورو فدایې مجاهدینو لخوا ورباندې فدایي بریدونه په بیساري ډول کامیاب او هدفمن وو، داسلامي امارت دویاند ذبیح الله مجاهد په وینا:

په یاد مرکز د عملیاتو پیل لومړی دیوه فدایي مجاهد لخوا یو مازدا موټر چې له درنو منفجره موادو ډک و د نارنګیټ هوټل له ودانۍ سره دجنګولوڅخه وشو. چې ورسره دیاد مرکز ګڼې ودانۍ، د خوب کولو خونې، خوړنځای، وسلتون، د نفتي او خوراکي موادو زیرمتونونه، دعیاشیو او فحاشیو تالارونه پریوتل او له امله یې د میشتو بهرنیانو لوی شمېر یې ترملبې لاندې راتلو په وجه مړه اوټپیان شول.

په تعقیب یې درې فدایان چې په سپکو ، درنو وسلو، غورځونکو بمونو، ماشینګنو او واسکټونو سمبال ول د یاد مرکز ودانیوته ته ننوتل او د پلان سره سم یې په بهرنیو اشغالګرانو چې دغه مهال په سوړو او سوغالو کې پټ ول دټوپکو شپیلۍ وروګرځولې. چې د سهارتر۵ بجوا یې دوام وکړ ددې په نتیجه کې هوټل کې له میشتو بهرنیانو څخه یو هم روغ پاتې نشو یا ووژل شول او یاپه مرګوني حالت کې ټپیان شول.

بیا دریو واړو فدایي مجاهدینو د ورکړل شوي پلان سره سم د بهرنه ورتلونکو اشغالګروځواکونو او د مزدوررژیم عسکر او پولیس تربریدونو لاندي ونیول چې تر ۲ ساعتونو پوري یې دوام وکړ په ترڅ کې یې ګڼ شمیر بهرني او کورني عسکر او پولیس مړه او ژوبل شول چې د امبولانسونو په وسیله د دښمن لخوا انتقالیدل. په دې توګه د دښمن په سوونو کسان چې د کره استخباراتي او داخلي معلوماتو په اساس په دې وخت کې میشت ول، زیاتره

تري و وژل شول او پاتې يې ټپيا شول ، په ځاني تلفاتو سربيره د مركز ودانۍ و نړيدلي ګڼ شمير وسايط يې تخريب او له منځه لاړل په لنډ ډول ويلای شو چې له اټكل اوتخمين نه هم زيات تلفات او زيانونه ورته واوښتل.

كه څه هم دښمن دعادت سره سم كوښښ وكړچې د تلفاتو كچه كمه وښيي خو حقيقت دادی چې لمر په دوه ګوتو نه پټيږي

ددې نه څو ورځې وروسته دهېواد په ختيځ ننګرهار هډه کې د امريكايانو په يو قطار د فدايي بريد په نتيجه کې ۲ ټانكونه ويجاړ او ۶ امريكايي عسكر ووژل شول

دمجاهدينو دمنابعو په وينا:
په ټوله کې ددغو بريدونو نه هدف دا دی چې څو امريكايان وفهموي دكومو شومو اهدافو پخاطر چې دوی افغانستان اشغال كړی، دهغو ترلاسه كول دومره اسان كارندی څومره چې

دوی اټكل لري افغانستان هضمول د دوی له وس نه بيرون كار دی. څنګه چې انګريزانو او شورويانو دغه ارمان له ځانو سره ګورته ويوړ هم داسې به يې امريكايې اشغالګران هم له ځانو سره ګورته يوسي.

كه اشغالګران هرڅو دخپل شتون دساتنې لپاره نوي وسايل او پرمختللې ټيكنالوجې راوړي خو په مقابل كې يې مجاهدين هم په ښه عالي مورال جهادي پلانونه تنظيموي او وربانديې دژوند كړی تنګوي

او د هرې ورځې په تيريدو دخپلو كړو جناياتونو بيه پريكوي، ښه داده چې امريكا ددې هېواد له اشغاله لاس واخلي...

په ورته توګه ولايتونوكې د عمري تندريزو عملياتو لړ كې له هلمند ه نيولي د بدخشان تخار ، كندز بغلان ، لغمان او غزني ترمركزونو فتوحات او بريدونه غځيدلي ، هلمندكې ګرمسير، خان نشين ،نادعلي او بغران ولسوالۍ عملاً دمجاهدينو په لاس فتحه شوي او دناوې ولسوالۍ په څوسوه متری كې عمليات جريان لري، مجاهدين لښكر ګاه ښارته دننوتو په حالت كې قرارلري، هم دا ډول په فراه جوزجان، بدخشان، كندز،بغلان او غزني كې دمجاهدينو له لوري د دښمن په مراكزو بريدونه دوام لري.

دشهيد امير المؤمنين ملا محمد اختر محمد منصور رحمه الله دشهادت وروسته امريكايانو او دهغوی اجيرې ميډيا داسې راپورونه وركړل چې ګواكي دطالبانو په عملياتو كې دپخوا نسبت كمښت راغلی اوپه راتلونكي كې به نورهم كمزوري شي ، ليكن وروستيو تازه فتوحاتو دامريكايانو او كفري ميډيا په دغه پروګند خاورې واړولې ، دغو سترو او تاريخ جوړونكو فتحوښوده چې دښمن دقوي ماتې په درشل ولاړدی اوهغه ورځ نيږدې ده چې په ټول هېواد كې دهغسي بد انجام سره به كه خدای كول مخ شي ،كوم سره چې د شوروي لښكرې د مخ شوې وې.

دسيمې دسياسي اوپوځي چارو شناندو په اند د عمري عملياتو كامياب اوچټک بهير ددې خبرې ښكارندوی دی چې طالبان كمزوري نه بلكې دپخوا په

ځېر منظم ،پیاوړي اوغښتلي دي، هغوی به وکړای ی شي په لنډ وخت کې نوري پراخې سیمې هم ترخپلې ولکې لاندې راولي.

دعمري عملیاتو وروستي خوځنده چټک بهیر وښوده چې امریکایانو دډېرو پیسو لګولو او دنوې پرمختللې ټیکنالوجۍ دکارولو سربیره جګړه بایللې اود عسکرو مورالونه یې پریوتي، هم دا راز جوته شوه چې مریکایانو او میډیا چې دغلامې اردو دپیاوړتیا او غښتلتیا په اړه په لوړستوني کومې دعوې او دنګلې کولې هغه ټولې درواغ وختې، دپریمانه اکمال او ډول ډول جنګي تجهیزاتو باوجود له جګړې له ډګره داسې راپورونه راځي چې هغوی د ډېر بد حالت سره مخ دي اوزیات شمیر یې د پوره نه اکمال له امله سرټکوي اوشکایت کوي چې په وخت سره ورته جنګي تجهیزات او خوراکي توکي ورته نه رسي،چې په سبب یې دوی دطالبانو په مقابل کې دجګړې تاب نلري، حال داچې پخپله دکابل غلام رژیم منلي چې دوی ته دامنیتي ترون دلاسلیکولو په عوض کې هره ورځ دامریکا لخوا ۲۴ملیونه ډالر دجنګي لګښتونو لپاره ورکول کېږي ددې سربیره داکمالاتو دنشتوالي غوغا ښيي چې دغني او د ډېل په دوه سره حکومت کې فساد ترمورګو رسیدلی، ځکه په ټولو کلیدي پوستونو یې زیاتره هغه مفسدین او غله ګومارل شوي، چې په غلا،چور اوفساد کې دوکتوراوې لري،هغوی سره یواځې دخپلو جیبونو دډکولو اوپه بهر کې دکورونو دراپیرلو غم دی،هغوی په افغانستان او افغانانو څه کوي، یواځې دڅو ډالرو مندلو مجنونان دي ددې سره سروکار نلري چې په لومړۍ کرښه کې دچا ځوی،دچاورور وژل کېږي؟ او په څنګه حالت کې ؟ هغه ځوانان چې تش په نامه افغان اردو لیکو کې ځانونه وژني ، خپل عمرونه تباه کوي باید فکر وکړي چې دچا لپاره ځانونه وژني؟ ددوی په وینو څوک سودا کوي؟ باداران یې دچا په خلاف جنګوي؟ هغوی څوک دي او څه غواړي؟

بیشکه طالبان هغه څوک دي چې دافغانستان دازادۍ لپاره جنګ کوي او داشغالګرو له مونګلو څخه خپل هېواد ازادول غواړي، اوهرچې په دوه سره حکومت راټول خللک دي ، لوی شمیر له اروپا او امریکا نه رالیږل شوي، دڅو ډالرو پیداکولو په عوض کې هغوی تیاردي چې دافغانستان او افغانانو په سر هره معامله چې کیږي، وي کړي! ددې لپارهد هیڅ قسم خیانت اوجنایت ارتکاب نه دریغوي اوطالبان هغه دي چې دافغاني ننګ او غرور شمله یې هسکه ساتلي او امریکایې یرغلګروته یې دافغنستان لویشت خاوره سوتنور کړې.... پای



# د تخیل په دنیا کې له ازادۍ سره مرکه

لیکنه:مولوي عبدالهادي (مجاهد )

کله کله د ځینې مو ضوعاتو د یادولو او پر هغـو د نیوکـو لپاره د تخیل اسلوب تر نور اسالیبو ډېر غوره وي، ځکه چـې پـه دغه اسلوب کې د تعبـیر او د واقعیتونـو د تمثیـل پـراخ ظرفیـت موجود وي او لیکوال کولی شي د ترخو واقعیتونـو پـه اړه خپـل احساس او پیغام د رمز په لطیفي او عاطفي ژبې لوستونکو تـه ور نقل کړي او په اسانه هغو مفاهیمو او وضعیتونو ته د هغوئ پام ورواړوي چې کېدی شي په نورو اسـالیبو کـې د هغـو بیـان ورڅخه یو څه ستغ شي.

دا چې افغانان د نړۍ یو آزادي خوښوونکی ولـس دی او د پېړیو په اوږدو کې تل د آزادۍ د ګټلو او پاللو په مبارزو کـې لـه ځینې نیمګړتیاوو سره سره پـه پرلـه پسـې ډول مصـروف پـاتې شوي دي او خپل ډېر څه یې د دغه ارزښت په خوندي ساتلو کـې په پوره شهامت مصرف کړي دي، نو په کار ده چې دغه ارزښـت یې په فکري او واقعي ژوند کې نور هم ښه وپالـل شي، او ټولـو هغو خطرونو ته د دې ولس د بچیـانو پـام وروړول شي چـې د دوئ آزادي تهدیدوي او یا یې په اړه د دوئ شعور کمزوری کوي.

د دې لپاره چې د دغه ستر معنوي او اجتماعي ارزښت پـه پاللو کې ما هم ځان ورګډ کړی وی نو د تخیل په دنیا کـې مـې د آزادۍ له مفهوم سره د یو څو موجودو واقعیتونـو پـه اړه دغـه لاندې مرکه ترتیب کړې ده، هیله ده چې د هغې لـه لارې بـه مـې مهمو مفاهیمو ته د خلکو پام واړولی وي.

ازادي هغه ارزښتناک او بې مثاله نعمت دی چې د خپلـواک او سرلوړي ژوند ټول داورمدار د همدې نعمـت تـر شـتون او نـه شتون پورې تړلی دی. که ازادي وي نو په ژوندکې خونـدهم وي، او که ازادي نه وي نو بیا ژوند د عذاب یو بل نوم دی.

کله کله اشخاص د ازادۍ له برکتـه د قومونـو او ولسـونو حیثیت تر لاسه کړي، او کله بیا هم پوره پوره ولسـونه د هغـې د نشتوالي له امله په ولسونو کې هېڅ اهمیت نه لري.

ازادي هغه ښکلې قدرمن حالت او معنی ده چـې سرلـوړي ولسونه خپل ټول مادیات تر هغې قربانوي.

ازادي هغه ښکلې او پتمنه لیلا ده چې د ویښو او خپلواکـو ولسونو مېړونه د هغې د ساتنې او پالنې پـه لاره کـې لـه خپلـو سرونو تېرېږي.

آزاد خبریال (غازي) له مودو مودو راهیسې په آزادۍ پسې لالهانده ګرځېده ترڅو هغه و ویني او مرکـه ورسره وکـړي. پـه هغې پسې یې ډېرښارونه، غرونه، هېوادونه او نظامونه ولټـول، ډېر ورپسې ستومانه شو، خو دا دی په پای کې وتوانېد چـې لـه هغې سره په یو داسې ځای کې وګوري چـې نـوم یـې د امنیتـي شرائطو له امله نشي ځرګندولی، خو له هغې سره یې یوه په زړه پورې مرکه کړې چې د لوستونکو مخې ته یې ږدو:

غازي :په پیل کي که مهرباني وکړئ او لوستونکو ته خپـل ځان ورمعرفي کړئ.

آزادي: مننه! د ځان د معرفۍ خبره دې ښه وکړه، ځکه چې زه اوس په مسلمانه ټولنه کـې یـو ناپېژنـدل شـوی او مجهـول مفهوم ګرځېدلې یم. ډېره موده وشوه چې چا ډېره نه یم لیـدلې. له خلکو هېره شوې یم، ځکه خو مې اوس څوک ډېره نه پېـژني، که څه هم چې پخوا زه د مسلمانو ولسـونو تـر ټولـو مشـهوره پېژندګلوي وم.

زمانوم آزادي ده. زه په اصل کي یوه معنی یم، خو کله کلـه په ژوندون کې مادي بڼه هم غوره کـوم. زه او آدم علیـه السـلام دواړه په یوه کال پیداشوي وو. وطن مې د زمکـې پـر مـخ کـوم خاص هېواد او سیمه نه ده، بلکې زه هر چېرې اوسېږم، خـو لـه ویښواو مېړنیو ولسونو سره. او چـې پـه هـر ځـای کـې زمکـه راباندې تنګه شي، او خپل راته پردي شي، نو بیا لـه هغـه ځایـه کډه وکړم او بل چېرې ولاړه شم.

زما او د انسان ترمنځ فرق دا دی چې هغـه پـه خـوراک او څښاک پایي، خو زه په غیرت، سرښندنې او قربانۍ. هغه مـري، خو زه مرم نه بلکې کمزروې کېږم او بیا خپل شکل بدلوم.

غازي: د شکل له بدلولو مو مطلب څه دی؟

آزادي: يعني كه لويه يم نو وړوكې شم. كه په ژوندكې په يوې مادي بنې بدله شوې يم، نو بيا بېرته معنى شم. كه مې حكومتونه وشړي، او يا مې د ترلوكوښښ وكړي نو بيا زه د كوم دردمن با احساسه او عظيم انسان په مغزو كې ترې د يو څه مودې لپاره پټه شم او هماغلته د هغه د فكر په دنيا كې خپله پاچاهي كوم. زه بيا هغه دردمن با احساسه او عظيم انسان دومره مست اوسرشاره كړم چې د ټولې دنيا زورور ورته كمزوري ښكاري. هغه دومره مست او پياوړی شي چې نه يې زولنې ايسارولی شي، او نه يې زندانونه عزم ورسستولی شي.

غازي: خلک خو تا په ښارونو كې لټوي، خو ته دلته په غرنوكې اوسېږې! موږ د دې مركې لپاره په تاپسې ډېر ښارونه او ډېرې مانۍ ولټولې، خو هلته مو ونه ليدې، كه لوستونكو ته يې هكله څه و واياست؟

آزادي: ډېره موده وشوه چې ما ښارونه او قصرونه پرې ايښي دي، ځكه چې زه هلته د مسلطو خلكو نه خوښېدم، هغوئ هلته زما د له منځه وړلولپاره ظالمانه قوانين جوړكړي ول، او چې قوانينو يې هم زه وركه نه كړای شوم، نو بيا يې زما د له منځه وړلولپاره پردۍ لښكرې راوغوښتې، ناتارونه او تاړاكونه يې جوړكړل، زما ډېر پلويان يې ووژل، او ډېر نور يې د تورو تمبو شاته بندكړل. ما هم نور د ښارونو ژوند پرېښود او له ماڼيو راووتم، ځكه چې دا مې نشو زغملی چې لكه د دربار د وينځې په څېر په ماڼيو كې د جابرانو او مستكبرانو په خدمت كې و اوسم، او د هغوئ د توطيو قرباني شم. نو دا مې ښه وګڼله چې غرونو ته پنا يوسم.

غازي: پوښتنې خو مې نورې هم ډېرې دي چې وروسته به يې درڅخه وكړم، خو ته اوس دا راته ووايه چې ته خو ماشاءالله ډېره ښه پښتو وايې! دا دې چېرته زده كړې ده؟ او بله دا چې نورې دې كومې ژبې زده دي؟

آزادي: پښتو خو مې په افغانستان كي زده كړې ده، زه ډېره موده په افغانستان كې اوسېدلې يم، په سلګونو كلونه مې له افغانانوسره تېركړي دي. زه د افغانانو دومره خوښه وم چې خپلې په لكونو ككرۍ به يې زما د ساتنې او پالنې په لاره كې قربانولې. ما د هغوئ ټولې ژبې زده كړې دي، خو پښتو مې ځكه ښه زده كړې چې پښتنو به له ماسره بې سارې مينه درلوده. خو پدې وروستيو وختونوكې په دوئ كې هم ځينې خلک را پيدا شول چې (سيكولر) يې بولي، دوئ ډېر بې غيرته او بې دينه خلک دي، او له ما سره يې سخته دښمني ده. زه تر دې څو كلونو د مخه هم په افغانستان كې له افغانانو سره اوسېدم خو...

غازي: نو بياڅه درپېښ شول؟

آزادي: آه، خپلواكو مجاهدو افغانو زه د خپلو وينو په بيه ساتلې وم، خو په دوئ كې يو څو نا اهله او غلام صفته خلک چې له ماسره يې فطري دښمني درلوده او زه يې په افغانستان كې نه شوم زغملی، لاړل او له غرب څخه يې زما تاريخي دښمنان (د صليبي جګړو يرغلګر) راوبلل. هغوئ ټولو زما په خلاف نړيوال ايتلاف جوړ كړ، او زما په ضديې يوه بې رحمه جګړه پيل كړه.

د دښمن لښكرې، وسلې اوجنګي وسائل دومره ډېر ول چې زما پلويانو د سختو جګړو كولو او بې د ساريو قربانيو په وركولو بيا هم د يرغل مخه ونه نيولی شوه. د سختوجګړو او د زرګونو ككريو تر قربانېدلو وروسته زه بيا له خپلو څو محدودو پلويانو سره هماغو غرونو ته وختم چې څوكاله د مخه ورڅخه راكښته شوې وم. يو څه پلويان مې خائنان او غداران هم وختل، هغوئ چې يو وخت يې ځانونه زما د پلويانو مشران او رهبران ګڼل، او د (مولوي)، (مجاهد) او (روحاني) نومونه يې هم پر ځانونو ايښي وو، خو د غيرت او وفا د امتحان پر ورځ په ډېرې بې شرمۍ د دښمن په صف كې ودرېدل.

د نورو ژبو په هكله به درته ووايم چې زه په عربي، چيچنيايي، كشميري، ازبكستاني او د قوقاز په ځينو ژبو هم پوهېږم، خو ترټولو زياته مې عربي ژبه خوښه ده، هغه چې ما له محمدصلی الله عليه وسلم، ابوبكر الصديق، عمربن الخطاب، خالد بن الوليد او نورو اصحابانو رضي الله عنهم څخه زده كړې وه، او لاتر اوسه عربان ورباندې خبري كوي.

په عربۍ كې مې بيا د فلسطين، عراق، يمن او د سوريې د خلكو لهجې ډېرې خوښې دي. خو د خليج او مصر- د هېوادونو لهجې هېڅ خوند نه راكوي، ځكه چې هغوئ عربي له حده زياته خرابه كړې ده، او انګريزي او عبري ( د يهودو ژبه) يې دومره ډېره پرې ورګډه كړې ده چې نور د عربۍ خوند وركې نه دی پاتې.

غازي :تا خو د نړۍ ډېر ولسونه او قومونه ليدلي او ورسره پاتې شوې يې، او ډېرو ولسونو ستا تر سيوري لاندې د سرلوړۍ ژوند هم تېركړی دی، كه دا راته و وايې چې ته څنګه حاصلېدای شې؟ اويا په بل عبارت ستا او د ولسونو ترمنځ په كوموشرايطو ديووالي او يو له بل څخه د دفاع تړون رامنځته كېږي؟

آزادي: دادي ډېره ښه ا ضروري پوښتنه وکړه، ځکه چې له مسلمانو ولسونو اوس زما لاره ورکه شوې ده، او له ماسره د تعامل طريقه هم ورڅخه هېره شوې ده. دوئ ته زما د ورتلو لاره يوه وي، خو دوئ پر بله زما د ورتلو انتظارباسي. پدې هکله بايد درته و وايم چې لومړۍ خبره خو دا ده چې زه چاته په خپله نه ورځم. زه هغه وخت ورځم چې دوئ مې وغواړي. او هغه ملت ته خو له سره ورځم نه چې تر مايې غلامي خوښه وي.

دويمه خبره داده چې زه هغه وخت يوه ملت ته ورځم چې په زرگونو او لکونو ځوانان يې له تورو او ټوپکو سره د جهاد او قربانۍ په ځپاندو ولولو زما د ورتلو پرلاړې په استقبال راته ولاړوي، او دي ته تيار وي چې د هغو خلکو سرونه ورغوڅ کړي چې دوئ ته مې له ورتللو ايساروي.

او دريمه خبره دا ده چې زه ولسونو ته په يوه شرط ورځم، او هغه دا چې زما د ساتنې او پالنې په لاره کې به له ټولو مادي گټو تېرېږي. زه بايد ورته تر ټولو مادي مصلحتونو گرانه او محترمه و اوسم. هغه خلک چې تر ما ورته خپل ځانونه، مالونه او دنيا گرانه وي، هغوئ کله هم مانشي ساتلای، او کېدای شي چې په ډېره ارزانه بيه مې خرڅه کړي، او يا مې لاس تړلې دښمن ته ور وسپاري. او که په لنډو يې درته ووايم نو زما د حاصلولو وسيله هم جهاد او قرباني ده، او د ساتلو ضامن مې هم جهاد او قرباني ده او بس. او هر هغه ولس چې د جهاد او قربانۍعزم او روحيه نه لري، زه له هغه سره هېڅ تړون او تعامل نه کووم.

غازي: ځيني خلک خو کوښښ کوي چې تا د ډيموکراسۍ، انتخاباتو، فرهنگي مبارزې، دعوت او دې ته ورته نورو وسيلو له لارې حاصله کړي، که دا راته و وايې چې ته له دې لارو هم ورځې؟

آزادي: لکه مخکې مې چې درته وويل زما د حاصلولو يوازينۍ لار جهاد او قرباني ده او بس. البته دغه نورې ټولې لارې څوکۍ، منصب، شهرت، ډلې ټپلې جوړولو او سياسي مصالحو ته د رسېدو لاري دي، خو هېڅکله له دغو لارو ما نشي حاصلولی. دغه لارې ټولې د ځان او خلکو د تېر ايستلو لارې دي، بلکې دا ټولې هغه لارې دي چې غلو، ټگانو، په مسلمانانو کې د غرب ملگرو، سست عنصره او خېټه ورو سياسي مشرانو، د دين په نامه تجارت کوونکو او د (امريکايي اسلام) پلويانو خپلو اهدافو او خوندونو ته د رسېدلو لپاره جوړې کړې دي.

غازي صيب! ددې لارو په هکله به زه خپلې څو ترخې تجربې درته تېرې کړم، کېدای شي له هغوڅخه د دغوو لارو د افاديت څومره والی درته معلوم شي.

زه به خپل د سترگو ليدلی حال درته ووايم او هغه دا چې پدې نږدې ماضي کې يو ځل د شمالي افريقا د يوه هېواد خلکو چې عربان يې (الجزاير) او کافران يې (الجېريا) بولي زه د انتخاباتو او ډيموکراسۍ له لارې ور دعوت کړم. هغوئ په ډېره مينه، اخلاص او ولولو په مليونونو خلک زما استقبال ته راوېستلي وو، زما د راتگ يې په لسگونو کلونو انتظار هم وېستلی وو، په سلگونو مليونه پيسې يې هم زما د راتلو لپاره مصرف کړي وې. ښځې، نارينه، ځوانان او زاړه ټول زما د راتلو پر لاره د استقبال لپاره راته ولاړ ول، خو افسوس چې دغه ټول خلک په تشو لاسونو او له وسلې پرته هسې د رنگينو بوتانو په څېر ولاړول.

کله چې زه چې د دوئ د استقبالي قطارونو ته په ور رسېدو شوم، ناڅاپه يو قيامت جوړ شو، له هرې خوا وسله وال سړي چې خبري يې د وطن د خلکو په ژبه کولې خو دريشۍ يې پردۍ وې او نشانونه يې هم پردي ټومبلي ول، له موږ راتاو شول او دا په مليونونو خلک يې ټول يوه خوا او بله خوا پسې واخيستل، ځيني يې ووژل، او ځيني يې وتړل. ځينې نور يې تر پښو لاندې له خارو سره خاورې کړل، او ځينې يې لاس تړلي زندانونو ته بوتلل. يوازې يو څو تنه ترې په تېښته خلاص شول.

غازي صيب! ډېر بد حالت وو، هره خوا چيغې او کوکارې پورته کېدې، نارينه له خپلو ښځو ورک شول، او ښځې له خپلو سړيو او اولادونو. مسلحو غدۍ والو زما د استقبالي لپاره ټولې ښايسته کړل شوې او رنگينې دروازې ونړولې، او بيرغونو ته يې اور وراچاوه. هېڅ ورته څه نشو ويلای، ځکه چې له خلکوسره وسله او د دفاع هېڅ وسيله نه وه. که به چا د څه ويلو جرأت وکړ نو سمدستي به يې سترگې ور وتړل شوې او په ډبولو او ښکنځلو به نامعلوم لوري ته روان کړی شو. دريشۍ والا ټوپکوالو زما استقبال ته د راوتليو خلکو مشران د بغاوت په جرم په زندانونوکې واچول. کشران يې لکه يتيمان د بل در ته محتاج او حيران کړل، او اولادونه يې ترې واخيستل او ټول يې په هغو مکتبونو کې شامل کړل چې همدې غدۍ والو د فرانسې په مرسته او فرمايش جوړ کړي وو چې څو ورځې وروسته بيا هماغه ټول ماشومان د کودتايي جنرالانو په مخکې په داسې حال کې په نمايشي مارش کې تېرېدل چې هلکانو يې (پتلونونه)

او نجونو يې (مينـي ژوپ) اغوسـتې وو، او جنرالانـو ورتـه لـه عسکري موزيک لاسونه پړقول.

غازي صيب! که د الجزائر خلک مسـلح وای، او د مقاومـت توان يې لرلی، نو هېڅکلـه بـه هغـو څـو لنـډغرو دغـه قيامـت ورباندې نه وای جوړکړی.

غازي: ښه! نو تا ته بيا څه درپېښ شول؟

آزادي: ما مخکې هم درته و ويل چې ما څوک وژلی نشي.ما په همهغه ځای کې فوراً خپل شکل بدل کړ او غرونو ته مې مخه کړه.

څه موده وروسته بيا د ترکيې خلکو د )نجم الدين اربکان( په مشرۍ دعوت راکړ، هغه ډېر اخلاصمن انسان وو، ما دهغه له ملگرو څخه د دفاع او مقاومت د وسائلو پو ښتنه وکړه، هغـوئ راته و ويل چې اوس دې شيانو تـه ضرورت نشـته، مـوږ اوس د شلم قرن په پای کې اوسېږو، او د اروپايـانو گاونـډيان يـو، لـه هغوئ مو د ديموکراسۍ، عدالت او تمدن اصول او اخلاق زده کړي دي. دلته نور د وسلې استعمال او جگـړې تـه ضرورت نشـته، او زموږ پوځيان هم نور هغه د (کمال اتاترک) او (عصـمت اينونـو) لنډغر بې دينه بدمعاشان نه دي چې چې له دين سره يې دښـمني درلوده، هغوئ اوس زموږ ډېر احترام کوي، او تا ته هم ډېـر ډېـر په درنښت گوري.

غازي صيب ! (اربکانخېلو) د تخيل په دنيـاکې لـه الفـاظو داسې رنگين جنت راته جوړ کړ چې تا به فکر کاوه چـې د کـوم ريښتيني واقعيت حکايت درته کوي.

ما چې د هغوئ دا منظمې او خوږې خـبرې واورېـدې نـو يقين مې راغی چې دوئ لکه چې رښتيا هم په دعوت باندې ترکيه فتح کړې ده.

خو غازي صيب ! کله چې ورغلم هماغه د (الجزاير) ناورين بيا تکرارشو. دا چې وروسته بيا دې خلکو ما ته د غړولو سترگې نه درلودې، نو له بدې ورځې دوئ هم لاړل په اروپا ورننوتل، او دا دی اوس د (ناټو) په صف کې د مسلمانانو په خلاف ولاړ دي.

غازي صيب! زه نه پوهېږم چې د دې زمانې خلک ولې زماپه اصـولو ځـان نـه پوهـوي او د ورتـگ بلنـې راکـوي؟! د دربيم ځل لپاره د مصر خلک په څه خبره د خپل بـوډا فرعـون (حسني مبارک) په خلاف راپورته شول، څـه واضـحه دعـوی او آجنډا يې هم معلومه نه وه، خو ښځې او نارينه ټول سړکونو تـه راوتلي ول، چا به گډاوې کولې او سندرې به يې ويلې، چا به گډوډ شعارونه پورته کول، چا به الله اکبر او نـور اذکـار او تسـبيحات زمزمه کول، چا به ډيموکراسي ډيموکراسي چيغې وهلې، خو چې د لمانځه وخت به راورسېد نو کوم (ډيره خريلی پتلون پوش) بـه يې مخکې کړ، او ټول به ښځې او نر په چوکونو او سړکونو کـې ورپسې ودرېدل.

عجيبه حالت وو، هـېڅ نـه معلومېـده چـې دوئ اسـلامي حکومت غوښت او که يې ډيموکراسي غوښته، ټولـو بـه (آزادي آزادي) نعرې وهلې، خو معلومه نه وه چې له (چا) او (څـه شي) يې آزادېدل غوښتل؟ او دا ځکه چې هغوئ يوازې د (بوډا فرعون) مخالفت کاوه، نه د (ډيموکراتيک فرعونيت). هغوئ به د فرعـون ټول لښکر خپل لښکر گاڼه، او د مسلمانانو او کفارو تر منځ يـو والي ته به يې د (الوحدة الوطنية) يعنـې مـلي وحـدت تـر نامـه لاندې خلک وربلل.

د مصريانو پدې گډوله پاڅون کې يـو ډول خلـک راپورتـه شول چې ځانونه يې (نړيوال اسلامي حرکت)بلل، دې خلکـو پـه همدې غوغا کې زما په نامه د (آزادۍ او عدالت) گونـدجوړ کـړ. دوئ هم د اسلام او اسلامي حکومت خبره چندان پـه زغـرده نـه کوله، خو د (ډيموکراسۍ) او (قانوني دولت) چيغې به يې په واز کومې وهلې.

غازي صيب! دې خلکو زه مصر ته ور دعوت کړم، مـا هـم چې د دوئ مسلسلې مظاهرې، گرمې ولولې او د آزادۍ پـه نامـه گوند وليد نو ورغلم، خو دا چې د الجزائر او ترکيې ترخې تجربـې مې په ياد وې نو د(نړيوال اسلامي حرکت) له مشرانو مې جهـاد ته د تياري او د دفاع د وسائلو په هکلـه وپوښـتل، هغـوئ راتـه وويـل: دا خـبرې نـورې مـه کـوه چـې خلـک بـه د (طالـب) او (القاعدې) ټاپه را باندې ولگوي، او بيا به مو د غـرب هېوادونـه، نړيوالې مؤسسې او بانکونه تأييد نه کوي.

ما چې هر څو ورته و ويل چې ماتـه دا بـې رحمـه پـردي پالونکي جنرالان او بې دينه سيکولر او غرب پلوي سياسـتمداران رامعلوم دي، هغوئ مې له تاسې سره نـه پرېږدي.خـو دوئ بـه هرځل د وسلې له ضرورته انکار او په ډيموکراسۍ ټينگار کـاوه، او ويل به يې چې موږ به د منـبر، راډيـو، تلـويزون او فرهنگـي مبارزې له لارې د فرعون له ملگرو جنرالانـو داسـې مجاهـدين جوړ کړو چې هم به مصر آزاد وساتي، هم به فلسطين آزاد کړي، او هم به دوئ زموږ د (ډيموکراتيـک اسـلامي حکومـت) داسـې

مجاهدين شي چې د افغانستان، عراق، سوريې او صومال له (سخت دريزو ترهکرو) به ډېر غوره وي.

غازي صيب! ما که هر څو ورته و ويل چې دفرعونانو پوځونه چې د غرب ابليسانو روزلي دي ټول سره يو دي، او زما او د اسلام دښمنان دي، خو دوئ به راته ويل چې دا خبرې مه کوه چې پدې خبرو زموږ (ملي وحدت) ته صدمه رسېږي.

حقيقت دا وو چې دوئ به خپله هم د فرعون له پاتې شونو جنرالانو وېريدل، خو ماته به يې په درواغو اطمينان راکاوه. بالآخره يوه ورځ هماغه فرعوني جنرالان چې دوئ د اسلام او وطن سپاهيان بلل په همدوئ پسې راپورته شول، د دوئ مشران يې ټول په زندانونوکې واچول، او کشران يې ورته د سړکونو پر سر تر بلډوزرونو لاندې کړل او په مسجدونو کې په زرګونو ووژل، او بيا يې د هغوئ مړي هم په بلډوزرونو را ټول کړل او اور يې ور واچاوه.

په هغه ورځ د رابعې په ميدان کې او د سړکونو پر سر چې کوم څه تر ټولو ډېر پراته وو او تر پېښو لاندې ليدل کېدل هغه د قرآن کريم مبارکې نسخې وې چې دې خلکو په شعارونو کې د پورته کولو او د تلاوت لپاره له ځانونو سره وړې وې، او هره خوا د مصري پوځيانو تر پېښو لاندې ليدل کېدې.

دې غولېدليو هم ځان تېرويست او هم يې زه تېر وېستم. اوس مې نو پوخ تصميم نيولى چې نور به نه د دغه ډول خلکو په دعوو او ويناوو باور کووم، او نه به هم کله د دوئ وطنونو ته سر ورښکاره کړم. دوئ خو هسې هم د زولنو او زندانونو معتادان دي او په غرونوکې د آزادۍ تر ژونده په زندانونو کې رياضتونه خوند ورکوي خو زه يې په شرمونو وشرمولم.

غازي: محترمې ازادۍ! راځم يوې بلې مهمې پوښتنې ته او هغه دا چې موږ خو ډېر ځلې له خلکو دا هم اورو چې په غرب کې ډېره آزادي ده، او حتى چې غربي مشران ځانونه د آزادۍ اتلان بولي، او هر وخت دا دعوه هم کوي چې هغوئ به د نړۍ نورو ولسونوته هم آزادي وربښي، خو پدې نه پوهېږو چې ته اوس رښتيا هم په غرب کې له غربيانو سره يې؟

او که د هغوئ په مقابل کې د ولاړو مظلومو ولسونوپه طرف کې يې چې د دوئ له ظلمونو او استبداده ځانونه خلاصول غواړي؟ که په دې هکله لوستونکو ته يوڅه وضاحت وکړې؟

آزادي: غازي صيب! دا پوښتنه دې رښتياهم ډېره مهمه ده، ځکه چې نن ورځ خو د غرب مېډيا تقريبا د ټولونړيوالو ذهنونه يرغمال کړي دي، او چې هرڅه وغواړي هغه ته درښتيا او حقيقت بڼه ورکوي او په دومره پراخه پيمانه يې تبليغوي چې له چاسره يې د تکذيب اراده هم پاته نشي.

غربي مېډيا دا خبره رښتيا هم د ډېرو خلکو تر غوږو رسولې ده چې په غرب کې ډېره آزادي ده، خو مسلمانان بايد پوه شي چې هغه زه (آزادي) نه بلکې هغه يوه بله ازادي ده. هغه له (دين) او (ديندارۍ) څخه آزادي ده، هغه له اخلاقو او معنوي ارزښتونو څخه آزادي ده. هغه له شرف او حياء څخه آزادي ده، هغه له انساني ترحم او عاطفې څخه آزادي ده. هغه له اصولو قوانينو، عادلو تړونونو او ميثاقونو څخه ازادي ده. هلته لور له پلارڅخه ازاده ده. ښځه له خپل خاوند څخه ازاده ده. فحشاء، اخلاقي فساد، همجنس بازي او قمار له محاسبې او پوښتنې څخه آزاد دي. هلته انسان ته مطلقه آزادي ورکړل شوې چې په هر ډول چې غواړي له انسانيت څخه ووځي وتلى شي، او هېڅوک يې د انسانيت په ضوابطو کې بند نشي ساتلى. او ان تر دې چې هلته دا آزادي هم شته چې د برطانيې د وليعهد ميرمن دې له بل چاسره د خپلو جنسي اړيکوخبرې د ملت په وړاندې په تلويزيون کې هم وکړي.

تر دې ورتېره دا آزادي هم شته چې نارينه دې له بل نارينه سره واده وکړي، او قانون دې د هغوئ د حقوقو دفاع او ساتنه وکړي، او د مسيحي کليسا (پادري) دې څه اعتراض هم پرې ونه لري، ځکه چې هغه په خپله هم ډېر هغه واړه ماشومان د خپل هوس ښکار کړي وي چې کورنيو يې د ديني زده کړې او د برکت د حاصلولو لپاره (مقدسې کليسا!!!؟) ته ورلېږلي وي.

او دا خبره چې هغوئ غواړي نورو ولسونو ته آزادي ور وبښي، دا هسې يوه د درواغو دعوى ده، ځکه چې همدغو غربيانو يو وخت تقريباً د نړۍ د نيمو اوسېدونکو (ريښتني) آزادي سلب کړې وه، د هغوئ هېوادونه يې استعمارکړي وو، او د خلکو هر څه يې د خپل ځان ګرځولي وو. خو کله چې ولسونو د خپلې تورې په زور هغوئ تېښتې ته اړ کړل، او له خپلو هېوادونو يې وشړل، نو بيا يې د ولسونو د بيا غلام ګرځولو لپاره دا ډنډورې وغږولې چې موږ نور ولسونه ازادوو.

د هغوئ د ازادۍ ښښلو مثالونه خو تاسې خپله په خپل هېواد افغانستان او هم په عراق کې وليدل چې څو مره خلک يې د ژوند له قيده آزادکړل؟ څومره يې بې کوره کړل؟ څومره ميندې يې بورې کړې؟ څومره ماشومان يې يتيمان کړل؟

غربیان په حقیقت کې هېوادونه له خپلو اصلي اوسېدونکو آزادوي، د هغوئ له خپل حاکمیت څخه یې آزادوي او بیایې یا عملا په خپله اداره کوي، او یا یې خپلو روزل شویو غلامانو ته ورسپاري. نو زما او د غربي آزادۍ تر منځ باید فرق وپېژنئ! زه د سعات سرچینه یم، او هغه د بدبختۍ کنده.

غازي: تاسو مخکې و ویل چې ډېر وخت له افغانانو سره پاتې شوې یاست، له افغانانو سره ستاسو د تجربې حاصل څه دی؟

آزادي: اکثره افغانان ډېر مېړني خلک دي، خو په افسوس باید و وایم چې پر ما مین دي خو قدر مې نشي کولی. کورته مې ور بولي خو پاللی مې نشي. زما لپاره له ډېرو شیانو تېرېږي، خو له مشرۍ او زعامته په خپلو منځونو کې یو بل ته نه تېرېږي. د راتلو انتظار مې ډېرکوي، خو چې ورته ورشم نو بیا راڅخه په نورو شیانو مشغول شي. ملایان یې سبقونه ډېر وایي خو خلکو ته دین لږ ور رسوي.

او په افغانانوکې ځیني داسې خلک هم شته چې ته به وایې د دوئ خټه د غلامۍ په اوبو لمده شوې ده. که انګریز ورشي هم دوئ به یې غلامان وي، که روسان ورشي هم دوئ به یې غلامان وي، که امریکایان ورشي هم دوئ به یې غلامان وي. دغه ډول خلک په افغانانوکې لږ دي خو ډېر زرنګ او چالاکه خلک دي او له هرې زمانې سره ځان برابروي. دوئ کله د (مقاومت سنګرداران) شي او کله بیا د (ډیموکراسۍ قهرمانان). خو دا خلک بیا ډېر ژر له منځه ځي.

یو کار چې افغانان په مجموعي ډول ورکې تر نورو ولسونو غښتلي دي، هغه دا دی چې زما د حاصولو په لاره کې له قربانۍ او سرښندنې نه ستړي کېږي. هر نسل یې تر پخواني نسله د لویو حماسو زېږونکی او د بدلونونو راوړونکی وي.

غازي : ستا په اړه مې یوه بله تاریخي پوښتنه په ذهن کې وه چې ما ویل په خپله به یې تاڅخه کووم، او هغه دا چې ځیني (سیکولر) افغانان دعوی کوي چې هغه مخکې ځل افغانستان ته (امان الله خان) راوستلې وې، او ستا د راوستلو افتخار هم د هغه په نصیب شوی وو. تا خو به هغه وخت هر څه په خپلو سترګو لیدلي وي، که دا راته ووایې دا خبره څومره حقیقت لري؟

آزادي: د ډیکولرو په خبره کله هم باور مه کوئ! هغوئ ډېر مکار او دروغجن خلک دي او دا خبره یې هم سپین دروغ دي. د امان الله خان چې خپل ذهن او فکر د انګرېز د افکارو او نظریاتو له غلامۍ آزاد نه وو او نو افغانستان به یې له هغوئ څه آزاداوه؟ او زه به یې څنګه افغانستان ته وروستلم؟

حقیقت دا وو چې زه ملي غازیانو او د انګریز په خلاف راپورته شویو مجاهدینو وروغوښتلم. خو کله چې ورغلم د امان الله خان راسره ورانه شوه، ځکه چې هغه غوښتل افغانستان د غرب پر لاره روان کړي، خو ما او غازیانو ورسره نه منله، نو یې له خپل خسر (محمود طرزي) سره چې په افغانستان کې د سیکولریزم پلار ګڼلی کېږي او په شام او ترکیه کې د ترکیې له (سیکولرانو) او د شام له (عربي مسیحي نشنلستانو) د سیکولریزم او نشنلزم مرض ورنقل شوی وو زما د له منځه وړلو مشوره وکړه. امان الله خان او طرزی دواړه د شاهي کورنۍ له ډېرو ښځو سره پدې نیت اروپا ته ولاړل چې له اروپایانو سره پر هغوئ زما د خرڅولو خبره وکړي، هلته یې تقریبا اوه مستې میاشتې تېرې کړې، خپله (نیم لنډغره) ښځه یې چې د محمود طرزي لور وه هم د اروپا پاچایانو ته پدې مقصد وروښوده چې هغوئ په دې قانع کړي چې دی نور هغه افغان نه دی چې خپله ښځه له خلکو په پرده کې ساتي، او د افغانو ښځو د پردې د ساتلو پخاطر د اروپایانو په خلاف جنګېږي.

غازي صیب! کله چې امان الله خان د اروپا له اوه میاشتینۍ مستې دورې وطن ته ستون شو، نو سمدستي یې زما او زما د پلویانو په خلاف په پغمان کې د جنګ اعلان وکړ. زما ملګري یې بندیان کړل، او زما طرف ته بلونکي عالمان یې په ډېرو بدو نومونو یاد کړل، او ان تر دې چې هغوئ یې د انګریزانو ملګري وبلل پداسې حال کې چې د انګرېز له کوره دی تازه راستون شوی وو، او د هغوئ قوانین یې له ځانه سره افغانستان ته د عملي کولو لپاره راوړي وو.

دا هسې د (سیکولرانو) لخوا د امان الله خان د اسلام دښمنۍ د کرغېړن تاریخ د ښایسته کولو هڅه ده چې په سپین سترګۍ یې ترسره کوي. همدا اوس تاسې نه ګورئ چې د ده د فکر او تګلارې پلویان ټول له اشغالګرو امریکایانو، انګرېزانو او نورو درغلیو کفارو سره ولاړ دي. او نه ګورئ چې د امان الله خان عکسونه همدا اوس د انګرېزانو او امریکایانو په لاس د جوړې ادارې پر دفترونو لګېدلي، که د مجاهدینو او غازیانو پر سنګرونو؟

غازي : ښه نو بیا ستا او دامان الله خان په جګړه کې څوک بریالي شول؟

آزادي: هغه ماتې وخوړه، ما او زما ملګرو هغه تـه داسـې ګوزار ورکړ چې په يوه ګوزار مو ايټاليا ته ورساوه، چې بيـا يـې کله هم افغانستان ونه ليد، او له هماغه ګوزاره يې د (پاپ) د کلي ترڅنګ سا وخته.

غازي: په افغانستان کې ستا په نامه پورې د تړلي يـو بـل څه پوښتنه هم درڅخه کووم او هغه د (آزادۍ راډيو) ده. کـه دا راته ووايې چې دارښتيا هم ستا راډيوده او که ستا په نامه د بـل چا راډيو ده؟

آزادي: دا راډيو په ما پورې هېڅ اړه نه لـري. دا نـه د آزادۍ راډيو ده، او نه هم خلکو تـه د آزادۍ تلقـين ورکـوي، بلکـې دا د امريکا راډيو ده چې د امريکا د کانګرس لخوا تمـويلېږي او اداره کېږي. د دغې راډيو اصلي نوم د(فري يورپ ريډيو) يعنـې د آزادې اروپا راډيو ده. يعنې دا د هغې آزادۍ راډيو ده چې په اروپـا کـې وجود لري، او د هغې په هکله خو مې مخکې درته وويل چې هغه څه ډول آزادي ده. دغه راډيو په اسلامي نړۍ کې د غربي نظرياتو او مفاهيمو د خپرولو په مقصد د عـراق او عـربي نـړۍ لپـاره د (العراق الحر)، د ايران لپاره د (راديـو فـردا)، د پاکسـتان لپـاره د (مشال راډيو) او د افغانستان او تاجکستان لپاره د (آزادۍ راډيو) په نامه خپرونې کوي، او تر ټولو غلام صـفته خلـک يـې ورکـې راټول کړي دي.

دا په حقيقت کې د(غلامۍ) راډيو ده، خو نوم يې ورباندې د (آزادۍ) راډيو ايښی دی. د دې مثال داسـې دی لکـه د(بـدلمنې) ښځې چې نوم (طاهره) وي.

غازي: که دا راته و وياست چې بيا به افغانستان ته راځـې او که نه؟

آزادي :ولې نه، افغانستان ته به ان شاء الله حتماً درځم، که د بل چا پخاطر نه وي نو د هغو فدايانو پخاطر خو بـه هرومـرو درځم خپلې د ګل په څېر ځوانۍ يې د الله د دين د حاکمولو لپـاره لوګې کړې. خو بيا هم يو دوه شرطونه لرم او هغه دا چې:

۱ـــ له درغلو يرغلګرو او د هغوئ لخوا لـه جـوړې شـوې اداري سره به هېڅ ډول جوړجاړی نه کوئ، بلکې په جهاد به يـې له منځه وړئ.

۲ـــ په خپل وطن کې به (سيکولرو) او (نشنلستانو) تـه د هېڅ ډول فعاليت اجازه نه ورکوئ، او نه به يې مشران پـه وطـن کې پرېږدئ، ځکه چې دوئ له ماسره سخته دښمني لري، او تـل زما په خلاف له کفارو سره شريکې توطيې جوړوي.

غازي :ښه، نو افغانستان ته به کله راځې؟

ازادي: په دې ورځوکې خو ما ته ډېر بلنليکونه له بېلابېلـو هېوادونو لکه له افغانستان، عراق، سوريې، فلسـطين، چيچنيـا، ارتيريا، صوماليا، کشمير، ازبکستان ، د فلپاين له مندناو او نورو هېوادونو څخه رارسېدلي دي. ما هم خپـل د ورتللوشرطونـه دې ټولو ته بيان کړي، و به ګورو چې دکوم هېواد خلک زمـا شرائـط تر نورو مخکې پرځای کوي. هر چا چې زما شرائط مخکې پـوره کړل نو لومړی به هم هغوئ ته ورځم، او بيا ورپسې نورو ته. خو مخکې له مخکې له هېچاسره وعده نه کووم، ځکـه چـې نـور د خلکو په تشو وعدو نه غولېږم. ترڅو يې چې زمـا شرطونـه پـه عملي ډول پوره کړي نه وي، او زما دښمنان يې له منځه وړي نـه وي د هېڅا وطن ته نه ورځم.

غازي: که د وروستۍ پوښـتنې پـه ځـواب کـې دا راتـه و واياست چې نور خبريالان او ژورناليستان چې غواړي لـه تاسـو سره تماس ونيسي، نو څنګه کـولای شي لـه تاسـو سره رابطـه وکړي، ځکه له ماسره ډېر نور مسلمان ژورناليستان هم ول چـې له تاسو سره يې ليدل غوښتل ، خو ځيني په ښارونو او ځيني نور يې راڅخه د لارې په کړليچونو کې پاتې شول؟

آزادي :نـن سـبا خـو زه د اسـلامي نـړۍ پـه غرونـو او ځنګلونوکې اوسم ، خو کله کله خپلو پلويانو ته په ښارونو کـې هم سر ورښکاره کووم. له ما سره تر ټولو اسانه د تماس لار لـه مجاهدينو سره رابطه نيول دي، هغوئ ما په اسانه ورپيـداکولی شي. خو يوه خبره په پام کې ونيسه او هغه دا چې زه يوازې لـه رښـتينيو (آزادو) خبريـالانو سره غږېـږم، او د هغـو خبريـالانو پوښتنو ته هېڅ ځواب نه وايم چې د پرديو لخوا په کـار ګومـارل شوي وي،ځکه چې د هغوئ اکثره يې جاسوسـان وي، او زمـا د دښمنانو لپاره کار کوي.

غازي: ستاسو له ځرګندونو ډېره ډېره مننه، هيلـه ده چـې يوځل بيا زموږ هېواد ته راشې، او موږ دې په ښاديو ښاد کړې.

آزادي: غازی صيب ستاسې له راتګ څخه هم ډېره مننه چې په خطرناکو حالاتوکې مو ځان ماته را ورساوه، او زما پيغام مو د نړۍ مسلمانانو ته ورساوه.



# .... دتاریخ ترټولو اوږده ناکامه جګړه!

اسلم امید

د مشهورې امریکا یي ورځپاڼې ( لوس انجلس ټایمز)په یوه تازه ګڼه کې د(اندریوباسیویچ) په نوم یو امریکایي لیکوال په افغانستان کې دامریکایانو لخوا په روانه جګړه دنیوکو ترڅ کې لیکلي:روانه جګړه چې اوس شپاړسم کال ته غځیدلې دامریکا راتلونکي ولسمشر ته به په داسې حال کې په میراث پاتې کیدونکې ده، چې دولسمشرۍ دواړه کاندیدان یې په باب له ویلو ډډه کوي او ترمهاله یې په اړه خپلې خولې ګنډلي!

دواړه دهغې جګړې په اړه له څه ویلو نه ډډه کوي، چې هغه په روانه پېړۍ کې دامریکا لپاره ترټولو اوږده، ناکامه اوبې هدفه جګړه ګرځیدلې!

دلیکوال په اند: دامریکا هر وګړی تمه لري چې دامریکا دولسمشرۍ کاندیدان باید دروانې جګړې پای ته رسولو په باب هم خپل دریځونه او کړنلارې روښانه کړي،ځوجوته شي چې په هغوی دواړو کې کوم یو رښتیادا جګړه پای ته رسوي اوکوم یوې نوره هم غځول غواړي؟

نوموړی زیاتوي: تردې مهاله نه ډونلډټرمپ په دې اړه دڅه وینا کولو هوډ ښودلی او نه هیلاري کلنټن ددې لویې او بړدمهالې جګړې دمنطقي انجام په باب دامریکا ولس ته کوم ډاډ ورکړی دی.

چې په سبب یې دامریکا ولس د زیاتې ناهیلۍ سره مخ دی، امریکایان نه له ډونلډ ټرمپ څخه توقع لري چې هغه به په افغانستان کې دامریکا دلویو ناکامیو توجیه کولو په اړه قانع کوونکي دلایل وړاندې کړي او نه یې له هیلارۍ کلنټن څخه...

نوموړی لیکوال هغو خپلواکو څېړونکوته ورته نظر لري چې په اندیې: امریکا دټولې نړۍ څخه دعسکرو راوستلو سربیره هم ونشوای کولای چې په افغانستان کې جګړه وګټي او جنګیدونکي مجاهدین وځپي! دهغوی په نظر: امریکا په دې موخه کې له بشپړې ماتې سره مخ شوې او نه یې په راتلونکي کې دبري چانس لیدل کېږي دنوموړي په وینا:دا وړاندوینه هیڅوک نشي-کولی چې په افغانستان کې به امریکا خپل شکست په بري باندې بدل کړي کنه؟

که څو هم سپینه ماڼۍ د جګړې ګټلو لافې شافې وکړې اویا جګړې ته پام نورهم ډېر کړې ، دامریکا د خلکو دمالیوپیسونه نورې هم پرې

ولګوي خو نتیجه یې همدا به وي چې نن یې مونږ ګورو...

دافغانستان جنګ امریکا نه له امنیتي ګواښونو خوندي کړه او نهورسره په افغانستان کې رښتینی دیمکرات نظام قوي شو، امریکا یې حکومت له یوه ټریلیون زیاتې پیسې مصرف کړې خو پخپلو موخوته درسیدو ځرک یې نه لیدل کیږي

افغانستان تراوسه پخپلو پښو ولاړ هېواد نشو اوس هم دبهرنیو مرستو په تکیا ولاړ او دبهرنیانو لخوا یې ساتنه اودفاع کیږي! دا ددي ښکارندویه دی چې امریکا او ایتلافیان افغانستان کې دخپلو اهدافو له ترلاسه کولوځخه په لیري واټن کې دي او په راتلونکي کې امید نشته چې دتوپان ځپو په مخ کړې امریکا یې بیړۍ به دهلاکت له ځپونه دبري ساحل ته ووزي! ځکه امریکا په افغانستان کې دپوځي او سیاسي پلوه د دغوځې ماتي سره مخ ده په افغانستان کې نن هم هغسي ګډوډې خوره ده کومه چې دامریکا او نړیوالې ټولنې له یرغل دمخه وه....

د امریکا یې لیکوال دا خبرې واقعبینانه او حقیقت دي افغانستان کې روان جنګي حالات ددې ښکارندویه دي چې امریکا په تیرو شپاړس کلو کې ونشوای کړای افغانان دځان تابع کړي .

نن هم دامریکا په مقابل کې مجاهدین منظم شتون لري اوله قوي دریځ نه برخمن دي، لګیادي



پرلپسې د والسوالیو او سیمو په نیولو او ازادولو سره په امریکا یانو او دهغوی په لاسپوڅو باندې دژوند کړۍ تنګوي، دا تنها زمونږ دعوه نده بلکې دیاد لیکوال پشان ګڼ امریکا یې شنانديي دا خبرې ګردانوي چې افغانستان کې امریکا دملیاردونو ډالرو مصرفولو سربیره بیا هم دجګړې ګټلو په موقف کې نده، بلکې دماتې اوشکست حالت ته نیږدې ده.

ورلډ پوسټ په نوم یوه امریکایې جریده کاږي په افغانستان کې مونږ دهغسي- سرخوږي سره مخ یو ، کوم سره چې په ویت نام کې مخ وو امریکایې واکمن لکه دقماربازانو چې پاتې پیسې هم په قمارکې وبایلي د مسلسل شکست سره مخ دي او لاسته راوړنې له لاسه ورکوي خو بیا هم دبري په نیت افغانستان ته نوي ځواکونه او پیسې لیږي، ددي چې ددې پایلې به هم دزیانونو او تلفاتو له ډېریدو پرته نور څه نه وي.

پای

سید شریف

# په طالب پوهنه کې د دښمن ستونزه

د طالبانو دمشر ملا اختر محمد منصور صاحب تر شهادت وروسته امریکایې ولسمشر-اوباما زیاته کړه چې د منصور صاحب په نښه کیدو دسولې لپاره لاره هواره کړه او په وینا یې چې همدا چاره به دفشار دالې په توګه طالبان سولې ته حاضر کړي.

دامریکا خارجه وزیرکیري وویل طالبان باید دخپل مشر د په نښه کیدو څخه عبرت واخلي،کنه نور مشران به یې هم د ورته برخلیک سره مخ شي.

دکابل حکومت مشرانو( غني او عبدالله) طالبانو ته اخطار ورکړ چې وسله پر مځکه کښیږدي، د سولې له پروسې سره ځای شي،کنه نو د ډرون بریدونو ښکار به شي.

طالبان روانه جګړه دخدای جل جلاله په لار کې مقدس جنګ(جهاد) ګڼي،په دې لاره کې کړاونه، ستونزې، زخمونه،اسارتونه یو لوی فضیلت او ثواب او په همدې لاره کې مرګ شهادت ګڼي، شهادت هغه اوچت مقام دی چې انحضرت صلی الله علیه وسلم یې دترلاسه کولو دعاء او تمنا کړې ده،د قران کریم په مختلفو سورتونو کې د خدای جل جلاله په لار کې مرګ لویه نیکمرغي بلل شوې،ان تردې چې لوی خدای جل جلاله په خپل کلام کې انسانانو ته فرمایې چې :« تاسې هغو کسانو ته مړه مه وایاست چې دخدای جل جلاله په لار کې وژل شوي وي،دوی مړه نه ،بلکې ژوندي دي،خو صرف تاسې پرې نه پوهیږئ،بل ځای الله تعالی فرمایې چې تاسې پر هغو کسانو دمړو ګومان مه کوئ چې دخدای تعالی په لار کې یې سرونه ښندلي وي،دوی ژوندي دي اوده عزوجل له لوري رزق ورکول کیږي».

د طالبانو تحریک دمشرتابه د شهادت او اسارت لویه مخینه لري،خو تېر ته په پام کله هم د طالب مشرانو شهادت دطالبانو خوځښت کمزوری کړی نه دی،په ځینو مواردو کې دمشرتابه شهادت او وفات نور هم طالبان مضبوط کړي دي.

د طالب د دښمن لویه ناکامي همدا ده چې طالب یې نه دی پیژندلی،مثلا امریکا او دکابل حکومت طالبانو ته په واک کې دوندې ورکولو مکرري نارې وهي،اما واقعیت دادی چې طالب دچوکۍ لپاره مبارزه نه کوي،که د طالب دمبارزې هدف د منصب ترلاسه

کول اوساتل وای،نو ولي به يې دامريکا غوښتنو ته منفي ځواب ويلای، له امريکا سره به يې پرځينو موضوعاتو توافق کړی وای،نور به يې هماغه امارت وای،نه به تور او جايزه ليستونه وای،نه به د ترهګرۍ تورونه وای،نه به ګوانتانامو،بګرام او کندهار کي زندانونه ترې ډکيدلای او نه به هم دموجوده ستونزو او ګواښونو سره مخا مخ کيدلای،خو اصل خبره داده لکه مخکي چي هم ذکر شوه، دطالب مبارزه دماديانو لپاره نه ده،طالب خپله مبارزه جهاد ګڼي،دې لاره کي ستړياوي، مشکلات، زندان، زخمونه او له ژوند سره خدای پاماني کول دالله تعالی د رضاء ستر سبب بولي او جالبه لا داچي پرې وياړي او يو تربله مبارکۍ سره ورکوي.

ايا داله عقله ليري نه ده؟، چي څوک ديو شي سره دومره مينه ولري چي د ترلاسه کولو لپاره يې پنځه وخته لاسونه لپه کوي،همدا يې لوی ارمان وي،پرې وياړي،ذکر وفکر يې داوي چي فلان ډير نيکمرغه ؤ چي دشهادت جام يې پر سر واړاوه،خو يوبل څوک يې بيا په همدغه مينه،ارمان او ارزو ډاروي او ګواښ ورته کوي چي که له خپله هوډه وانه وړې نو همدغه ارمان( شهادت) به دي در پوره کړم.

د طالب دښمن دخپل حماقت او جهالت له امله د طالبانو نظام ړنګ کړ او په خپل پوځي شتون سره نور



هم خپل حماقت ته دوام ورکوي،تېره يوه نيمه لسيزه طالب بندي شو،شکنجه شو،زخمي شو،معلول شو، شهيد شو،دکور وکلي پريښودلو ته مجبور شو،شتمنی يې چور شوې،باغونه او فصلونه يې له خاورو سره برابر شول،پاسفورس،کيميايي او بيلوژيکي وسلې پرې استعمال شوې،خو له خپلي مبارزې بيزاره نشو،پور ته ذکر شوو واقعيتونو ته په پام سره چي نور هم د طالب ډارولو کمپاين ته د حماقت نوم ور نه کړو څنګه به يې تعبيرو؟.

په طالب پوهنه کي تمبل اوناکام شاګرد که پر خپل کار يعني طالب سره مقابله باندي له سره غور ونه کړي او پر تيرو کړنو پښېمان نشي، له يو عالم رسوايې سره به مخ شي او ستونزي به يې نوري هم پسي زياتي شي.

# د کونړ ولایت له جهادي مسؤل

# مولوي محمد اسمعیل سره مرکه

مرکه کوونکی: حبیب مجاهد

کونړ ولایت دافغانستان په ختیځ کې موقعیت لري ، چې ختیځ ته یې دپاکستان سرحدي سیمه ، جنوب ته یې ننګرهار ولایت ، شمال ته یې نورستان ولایت او لویدیځ ته یې دنورستان او لغمان ولایت ځینې برخې پرتې دي.

دکونړ ولایت مساحت ۴۹۴۲ مربع کیلومتره او نفوس یې دوروستیو احصایو له مخې ۵ لکه تنه ښودل کیږي ، دکونړ ولایت مرکز اسعداباد ښار دی ، چې دوتلي مسلمان مفکر علامه سیدجمال الدین افغان دزیږیدو سیمه ده ، دکونړ ولایت داداري واحدونو نومونه په لاندې ډول دي .

مرکز اسعداباد ، ماڼوګي ،مروره ، وټه پور ، نرنګ ، سرکاڼي ، دانګام ، شیګل ، چپه دره ، نورګل ، څوکی ، خاص کونړ ، ناړۍ ، غازي اباد ، اسمار .

کونړ ولایت چې یو غرنۍ ولایت دی ډیر غرونه یې په ځنګلونو پوښل شوي دي ، دکونړ مست سیند ، ځنګلونو او شنو درو دې ولایت ته ځانګړې ښکلا ورکړې ده، دغه راز همدا رنګین طبیعت ددې ولایت په ستراتیژیک اهمیت کې هم مهم عامل بلل کیږي .

د غزني ولایت د اندړو ولسوالۍ اوسیدونکی مولوي محمد اسمعیل صاحب چې تردې وړاندې یې د غزني او زابل ولایاتو دنظامي جهادي مسؤل یا والي په حیث دندې اجراء کړې همدا اوس د اسلامي امارت لخوا د کونړ په ولایت کې د جهادي چارو مسؤل/ والي دی، له نوموړي سره مو د کونړ ولایت د جهادي وضعیت په اړه مرکه کړې چې ستاسو توجه ورته راګرځوو.

**پوښتنه**

محترم مولوي صاحب له هر څه وړاندې تاسو ته هرکلی وایو، که په پیل کې د کونړ ولایت په جهادي وضعیت باندې عمومي رڼا واچوئ مهرباني به مو وي.

**ځواب**

نحمد و نصلی علی رسوله الکریم اما بعد: له هر څه مخکې تاسو او محترمو لوستوالو ته سلام او نیکې هیلې وړاندې کوم. ستاسو د پوښتنې په ځواب کې باید ووایم چې کونړ د افغانستان د هغو ولایاتو له جملې څخه دی چې د روسانو په خلاف د جهاد د ځلانده تاریخ په شان یې اوس د امریکایي یرغل په خلاف جهاد کې هم ونډه او کارنامې خورا ښکاره او د افتخار

وړ دي. دا ولایت چې خورا مهم ستراتیژیک جوړښت او موقعیت لري لله الحمد د جهاد حالت يې ډیـر د امیـد او خوښۍ وړ دی.

کونړ ولایت چې ۱۴ ولســوالۍ لــري همــدا اوس د اسلامي امارت مجاهدین په ټولو ولســوالیو کــې فعــال حضور او منظم ملکي او نظامي تشکیلات لري. د کونړ یوازې یوه ولسوالي چې هغه خاص کونړ دی حکـومتي عسکر په کې د ولسوالۍ له ودانۍ بهر په اطرافي سیمو هم تر یوه حده واکمني لــري د نــورو ټولــو ولســوالیو یوازې مراکز له دښمن سره دي. مجاهدین په ټولو کلیو، اطرافو، پراخو درو او ولسي ســیمو بانــدې بشــپړ واک لري او د اسلامي نظام په چوکاټ کې ورباندې واکمنــي چلوي.

پوښتنه

که څه هم د امریکا ولسمشر بارک اوبامــا د ۲۰۱۴ میلادي کال په پای کې په افغانستان کې د جګړې د پای اعــلان وکــړ، مګــر عمــلا معلومــه شــوه چــې دا یــوه تیرایستونکې خبره وه او امریکایان عمــلا د افغانســتان په اشغال کې دخیل پاته شول، که دا راته ووایاست چې په کونړ ولایت کې آیا امریکایان یا نور خارجي عســکر عملا شتون لري او که نه ؟ او یا دا چې پــه جګــړو کــې شرکت کوي او کنه ؟

ځواب

په کونړ ولایت کې پخــوا امریکایــانو خــورا پــراخ حضور درلود او په ډیرو سیمو کې یــې پاخــه بیســونه جوړ کړي و، خو وروسته د مجاهدینو څپونکو بریدونو اشغالګر له دې ولایت څخه تیښتې ته اړ کړل، اوس چې زموږ څومره معلومات دي امریکایان په دایمي شکل په دې ولایت کې نه اوسي، اما د ځــانګړو عملیــاتو لپــاره موقتا راځي، لکه څو میاشتې وړاندې کله چې مجاهدینو د برګمټال، کامدیش او ناړۍ لاره د اسمار په ساحه کې بنده کړه او تر دوو میاشتو یــې حکـومتي عســکر تــر سختې کلابندۍ لاندې ساتلي و، د کابل رژیم ددې لارې د خلاصون لپاره لوی عملیات پــلان کــړل چــې ورسره امریکایي اشغالګر هم یو ځل بیا کونړ ته راغلل او موقتا د سرکانو په مرکزي بیس کې میشت شول.

په دې سربیره امریکایانو د بې پیلوټه الوتکــو پــه توسط لا هم په کونړ کې جګړې ته دوام ورکــوي، دوی هلته پرلپسې ډرون بریدونه کوي، خو دا چې مجاهــدین له احتیاطي تدابیرو کار اخــلي ددښــمن دغــه بریدونــه کومه څرګنده نتیجه نلري اما د تأسف خبره داده چې په کونړ کې د امریکایي ډرون بریدونو له امله ولسي خلکو ته ډیر تلفات رسیږي، اشغالګر په مکــرر ډول د ولسي ـ خلکو په کورونو، نقلیــه وســایطو او تجمعــاتو بانــدې ډرون بریدونه کوي چې ځیني پیښې يې شاید تاسو لــه رسنیو هم اوریدلي وي اما ددښمن دغسې ډیــر مظــالم پټ پاته کیږي او غربي رسنۍ یې په اړه هــیڅ هــم نــه نشروي.

پوښتنه

څو کاله وړانــدې چــې امریکایــانو پــه کــونړ اود افغانستان په نورو سیمو کې پــه مخــامخ جګــړو کــې سخت تلفات ولیدل نو د امریکایي پوځ مشرتابه د نــوې ستراتیژۍ سره سم اعلان وکړ چې خپل ځواکونه به لــه اطرافي سیمو راشاته کړي، او مرکزي نقاط به وســاتي او په اطرافي سیمو کې به د عراق غوندې محلي ملیشې یا اربکیان جوړ کړي تر څو د مجاهدینو د سلطې مخــه

ونيسي. که دا وواياست چې آيا په کونړ کې ددښمن دغه ستراتيژي کاميابه شوې او د محلي مليشو په توسط يې د مجاهدينو د پرمختګ مخه نيولې که څنګه؟

**ځواب**

امريکايانو او د هغوی مزدور رژيم رښتيا هم په کونړ کې د مليشو يا اربکيانو جوړولو لپاره ډير تلاش وکړ، د دوی هڅه دا وه چې د دغو ټوپکيانو په توسط به اطرافي سيمې تر خپل کنټرول لاندې وساتي، اما لله الحمد د اولس د ويښتيا او بصيرت له امله دوی ددې پروګرام په بشپړ تعميل ونه توانيدل.

دوی په ځينو ولسواليو کې اربکيان جوړ کړل مګر اربکيان يې د پوليسو او اردو په شان د ولسواليو له مراکزو سره نږدې پاته شول او اولسي سيمې يې اشغال نکړای شوې،يوازې د دانګام په ولسوالۍ کې اربکيانو په څو کليو واک درلود او هلته يې پوستې جوړې کړې وې، چې تير کال مجاهدينو ورباندې بريالي عمليات ترسره کړل چې په نتيجه کې يې دغه کلي او پوستې ترې مکملې ونيول شوې، د دانګام داربکيانو مشر قوموندان خانجان هم په سږ کال کې له منځه لاړ دغه راز د کونړ په سطحه د اربکيانو عمومي قوموندان چې په سره قوموندان سره مشهور و د عمري عملياتو په لړ کې سږ کال د روژې په وروستيو کې د سرکانو په ولسوالۍ کې په يوه چاودنه کې ووژل شو.په ټوله کې ويلی شو چې اربکيان او د محلي حکومتي مليشې په کونړ کې د مجاهدينو په وړاندې کوم جدي خطر نه دی.

**پوښتنه**

په تير کال کې اسلامي امارت له څو مهمو ازمويښتي پړاوونو تير شو چې لومړی د اسلامي امارت د مؤسس د وفات اعلان او د اميرالمؤمنين په حيث د شهيد ملا اختر محمدمنصور ټاکل کېدل و او وروسې دتير شعبان په مياشت کې د ملا اختر محمد منصور شهادت او  د اميرالمؤمنين په حيث شيخ هبت الله صاحب ټاکل کيدل و.

په کونړ کې دغه بهير څرنګه تير شو آيا مجاهدين متحد او امارت ته وفادار پاته شول او که د تفرق ښکار شول؟

**ځواب**

په کونړ کې هم د نور افغانستان په شان لله الحمد دغه دواړه مرحلې په خير سره تيرې شولې، مجاهدين ټول متحد او متفق پاته شول هيڅ کوم مخالفت ونه ليدل شو، د کونړ ولايت مجاهدين او په خاص ډول مشران يې الله تعالى له ستر درايت او بصيرت څخه برخمن کړي دي، دوی پوهيږي چې اسلامي امت او په اوس وخت کې جهادي ډلو ته ټول مشکلات له دې نه وړپيښ دي چې دوی د ډيرو وړو خبرو او اختلاف الرأی له امله په ډلو ويشل شوي دي، تفرق او ډلبازۍ ته يې مخه کړې، چې په دې سره هر ځای د مجاهدينو قوت اوبه شوی دی، ځواک يې له منځه تللی او دښمن ته ناوسه شوي دي.

نو اوس لله الحمد مجاهدين ټول په دې پوهيږي چې د کفري يرغل په مقابل کې زموږ د اتحاد او پايښت راز لومړی د الله تعالى نصرت او دوهم يووالی او اتحاد دی، په تير شعبان کې چې شيخ هبت الله اخندزاده صاحبد اميرالمؤمنين په حيث وټاکل شو، ټاکل شوې داسې وه چې د هرولايت مسؤل به د ولايت په نمايندګۍ له شيخ صاحب سره بيعت کوي، ځايي مجاهدينوپه ډير

اخلاص او پرته له هیڅ اختلاف له ماسره نیابتا بیعت او ما له شیخ صاحب سره ددوی او ځــان پــه اســتازیتوب بیعت وکړ. نو مطلب دا چې په کونړ کې کــه څــه هــم د مسلکونو پــه لحــاظ د مختلفــو مســلکونو سره تــړلي مجاهدین اوسي، مګر ددوی ټول هدف او نصــب العــین یو دی، چې هغه د کفر په خلاف جهــاد دی او دوی تــر خپل منځ د وروڼو په شان دغه مبارزه پر مخ بیایي.

پوښتنه

تاسو په نږدې ورځو کې د کونړ ولایت له بیلابیلو سیمو څخه لیدنه وکړه، مجاهدین او اولسي- خلــک مــو ولیدل که دا راته ووایاست چې په کونړ کې عام اولس له اسلامي امارت او جهاد سره څومره خواخوږي لري؟

ځواب

په کونړ کې چې په بیلابیلو ولســوالیو وګرځیــدم، لرې پرتو سیمو، درو او کلیو تــه لاړم دا راتــه معلومــه شوه چې لله الحمد ددې سیمې خلک په ډیر ټینګ عزم د اسلامي امارت او مجاهدین سره ولاړ دي، یوعمده توپیر دادی چې په نورو سیمو کې چې ما لیدلي عام اولس یــا خلک له مجاهدینو سره خواخوږي لري او همکاري هــم ورسره کوي، مګر همکــاري یــې تــر ډیــره د خــوراک، اکمالاتــو، پنــاه ورکولــو او تــر ډیــره حــده مــالي او لوژیستیکي همکاري وي.

مګر په کونړ کې چې ما ولیدل اکــثره عــام خلــک عملي مجاهدین ول، دوی هر چا په کــور کــې د جهــاد لپاره اماده وسله درلوده، کله به چې د عملیاتو غږ شــو، یا به ددښمن د تعرض اوازه راغلــه، نــو د عــام اولــس ځوانان به ټول له خپلو وســلو سره راوتــل او جهــادي وظیفه یې ترسره کوله.موږ یو ځل په ناړۍ ولســوالۍ د عملیاتو لپاره پلان درلود چې په ډیر لږ وخت کــې ۸۰۰ مسلح مجاهدین عملیاتو ته تیار شول، چې اکثره یې عام اولسي ځوانان وو. نو بناء ویلی شو چې د کــونړ ولــس یو مجاهد اولس دی چې د اسلامي امارت تر بیرغ لاندې له هیڅ راز جهادي هڅــې او قربــانۍ څخــه ځــان نــه دریغوي.

پوښتنه

د امریکا ولسمشر بارک اوباما څو میاشتې وړاندې اعلان کړه چې په افغانستان کې یې خپلو پوځیانو ته یو ځل بیا د پوځي عملیاتو صلاحیت ورکړی دغــه راز یــې تازه په تازه اعلان کړی چې ۸۰۰ عسکر به یو ځــل بیــا افغانستان ته راولي چې پــه چینــوک او بلــک هــاواک چورلکو به سمبال وي دوی بــه د طالبــانو پــه خــلاف جګړه کې برخه اخلي، ددې اعلان په اړه ستاسو غبرګون د یوه مجاهد په حیث څه دی؟

ځواب

لکه څنګه چې د اسلامي امارت لخوا په دې پــه اړه په رسمي بیــان کــې راغــلي دغــه اعلانونــه او دقــدرت نمایشات د شکست خوړلي دښمن تبلیغــاتي نیرنګونــو دي، دښمن چې د جګړې په ډګرکــې یــې ماتــه خــوړلې کوښښ کوي په دغسې اعلاناتو مجاهدین وویروي مګر دوی دې خبر وي چې مجاهدینو په تیرو پنځلس کلونو کې ثابته کړه چې د امریکا یا کوم بل طاغوت له زور او وسلو څخه نه ویریږي.

زما په فکر امریکایانو چې دوه کالــه وړانــدې پــه افغانستان کې د خپلو پوځي عملیاتو پای اعلان کړ، هغه مهال هم دوی عملا له جګړې لاس نه و اخیستی، بلکــې یوازې یې د جګړې شکل بدل کړی و، دوی ته په مخامخ

جګړو کې ډیر تلفات اوښتل نو یې د ځمکنیــو عملیــاتو ډیر اختیار داخلي ګوډاګیانو ته وسپاره او خپلــه یــې د ځانګړو عملیاتو، چاپو او ډرون بریدونو غونډې عملیات پیل کړل. اوس چې امریکایان یو ځـل بیـا غـواړي پـه مخامخ جګړو کې برخه واخلي د مجاهدینو پـه روحیـه یي ځکه ښه اغیز کړی دی، چې امریکایي پوځ د فســاد اصلي جرړه ده او په دې ډول مجاهدین امکان پیدا کوي چې د فساد په اصلي جرړه ګوزار وکړي او تلفات ورتــه ورسوي.

اوباما چې وايي ۸۰۰ پوځیان یې رالیږلي، باید پــه دې پوه شي چې یو وخت په افغانستان کې د امریکا او نورو غربي طاغوتیانو ۱۲۹ زره مجهز پوځونه میشــت او په جګړو بوخت ول، هغوی چې په دې وطن کې بریا ونه مونده نو دغه ۸۰۰ پوځیان به کومــه بریــا ترلاســه کړي.

د یوه مجاهد په صفت باید ووایم چې په کــونړ او درست افغانستان کې مجاهدین د کفارو هر نوع مقابلې ته بشپړ تیاری لري، مجاهدین ځکــه لــه جهــاده ځخــه ستړي نه دي چې جهاد یو تر ټولو لوړ عبادت بولي او د مرګ ترساعته وربانديې ځان مکلف بولي نو ځکه ورتــه پوره امادګي لري.

**پوښتنه**

په پای کې که څه پیغام لرئ لطـف وکـړئ راسره شریک یې کړئ!

**ځواب**

پیغام مې مجاهدینو ته راجع دی او هغه دا چــې د اسلامي تاریخ له عبرتناکو واقعو او په دې نږدې کلونو کې د جهادي جریاناتو له سرګذشت ځخه عبرت واخلي او د خپلې لارې په ټاکلو کې ورنه استفاده وکړي.

موږ ولیدل چې ډیر لوی لوی خوځښتونه چې کلــه د معمولي خبرو په سر د ذوقي اختلافاتو ښکار شــول، الله تعالی له خپل نصرت ځخه هم محروم کړل،او بیا لــه سخت بد حالت سره مخامخ او په لویو فتنو کــې واقــع شول. دې ته په پام سره باید موږ د الله تعالی دې پیغام ته چې وايي: و لا تنازعوا فتفشلوا . . . په ډیر دقت سره توجه وکړو او عمل وربانديې وکړو. که موږ غواړو چــې مبارزه مو بریــالی شي، کــه غــواړو چــې د دې اوږده انقــلاب د شــهیدانو، مجروحینــو، معلولینو،بنــدیانو او مهاجرینو ارمانونه پوره کــړو بایــد چــې خپــل اتحــاد وساتو، او اسلامي امارت چې اوس په ټوله نړۍ کــې د جهادي حرکاتو په منځ کــې د اســتقامت،ثبات، درایــت، اتحاد او جهادي بصیرت سمبول بلل کیږي دا امارت باید د الله تعالی یو لوی نعمت وبولو، قــدر او احــترام یــې وکړو، اطاعت یې وکړو . او که خدای مکړه ددې نعمــت ناشکري مو وکړه یا مو په ټیټه ورته وکتل ضرور بــه د الله تعالی له سخت عذاب او امتحان سره مخامخ کیږو.

نو مجاهدینو ته مې همدا پیغام دی چې خپل اتحاد ټینګ وساتئ،د مشرانو اطاعت کوئ او لــه مخالفــت او انحراف ځخه ډډه وکړئ!

# هغه چې د جاهلیت غرور یې مات کړ

لیکوال: باهر حقپال

د جاهلیت په پېر کې، د زیات فصاحت او خوږژبۍ له امله، داسې شخص چې د شاعرۍ ذوق او مینه ونه لري، یا خو بیخي نه و، او یاهم ډېر کم وو، د دوی نارینه او ښځینه، زاړه او واړه یې هرو-مرو څه ناڅه د شاعرۍ د ښاپیریو په دام کې ښکیل وو، ته وا: له پیدایښت سره یې شاعري او خوږژبي تړلې وه، د دوی شاعري د عصري شاعري په پرتله ډېره ناشنا وه، عصري شاعري ته ورته اکتسابي او جبري نه وه بلکې عربي شاعري عموماً في البدیهه وه، ښه تر ښه شعر ویلو/لیکلو کې یې آند واند، فکر، غور او د مضمون پلټنې ته اړتیا نه پیښېده، خپل فصاحت او قادرالکلامۍ دومره غرور او کبر وربښلي وو، چې له عربي نړۍ پرته یې د نورې نړۍ ژبې عجم) گونگ( بللې.

پر دې سربېره فصاحت او ژبورې دومره په سر اخیستې و، چې مخکښانو عربو به خپل نوپیدا ماشومان د دایه او روزنې له پاره صحرایې تی ورکونکو مېرمنو ته په اجرت ورکول، تر څو د صحرا اب وهوا یې ماشوم څواکمن او غښتلی لوی کړي، او ژبه یې فصیحه او روانه وگرځي؛ ځکه چې د صحریانو ژبه د ښاریانو په پرتله روانه، سوچه او خوږه وي.

ریښتیا هم که ځیني عربي اصطلاح و پلټل شي، او عربي لغت ته ځیر شو ډېر توري به داسې په لاس راشي چې نورې ژبې یې په اړه گونگې پاتې سوې، ډېر داسې توري او اصطلاح به زموږ مخې ته راشي چې نورو ژبو کې یې معادل توري نه مومو.

د بیلگې په ډول یوازې هغه اصطلاح چې د جاهلیت پر مهال به عربو د ښکار متعلق کارولې، معادل یې نشو ښودلې، مثلا:

کوم ښکار به چې له ښي اړخه راغی هغه ته به یې "سانح" توری کاره و.

کوم ښکار به چې چپ اړخ څخه راغی هغه ته به یې "بارح" توری کاره و.

کوم ښکار به چې مخامخ راغی هغه ته به یې "قعید" کاره و.

کوم ځای کې به چې ښکاري کمین نیولی وو هغه ته به یې "قره" او ښکاري به چې له ښکار کولو ناتوانه راستون شو هغه ته به یې "اخفاق" توری کاره و.

هوکې! هغه چې نه یوازې د جاهلیت عربي غرور یې مات کړ، بلکې د نړۍ ټول خوږژبي ژبور یې مات او غرور یې ورته له خاورو سره خاورې کړ، ستر کتاب د اسلام د ستر پیغمبر ستره او تل ترتله معجزه "قران شریف" یادوم.

هغه څوک یې مات کړل، څوک چې له فصاحت او خوږژبۍ سره_سره له ټولو زیات دې ته لیواله وو، چې څه رنگه د قران خپره شوې رڼا تېته او خپله ناتوانۍ

پته کړې، سره له دومره بې دریغه فصاحته هم که د دوی تر توان پوره وای، نو د سترگو د رپ تر کچې به هم نه وای تم شوي، د دې پر ځای چې سالمه معارضه او محکم دلیل وړاندي کړي، خپله ناتوانی پر خپل عناد او خندونکیو ماشومانه خبرو پټوي،

کله وایې: سحر دی. کله وایې شعر دی. کله وایې پخواني نقلونه دي. که سحر وای! نو سحر خو لنډ مهاله کارنده وي، او بیا د وخت په تېردو خامخا د فنانیت تل ته غورځي/ له منځه ځي او قران دا دی له څه باندي څوارلس پیړۍ داسي ځلیږي چې ځلا یې ورځ تر بلې لا زیاتیږي او تورتمونه رڼوي.

که شعر او یا پخواني مروج نقلونه وایې! نو د شعر او دروغجنو ناولونو کې خو عربو له هرچا وړې بیا ولې له تحدیدونو او ننگونو سره یې و نشو کړای، چې قران ته ورته خبرې جوړې کړې.

تحدیدونه/ننگونې...

قُلْ فَأْتُوا بِكِتَٰبٍ مِّنْ عِندِ اللَّهِ هُوَ أَهْدَىٰ مِنْهُمَآ أَتَّبِعْهُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ.

]سورت القصص: ۴۹[

] اې پیغمبره (ص)!] دوی ته ووایه: "نو تاسي د الله له لوري داسي کوم کتاب راوړئ چې له دغو دواړو څخه زیات هدایت ښوونکی وي، که تاسي رښتیني یاست، زه به د هماغه پیروي وکړم".

بیا یې ننگونه ورته اسانه کړه، چې ټول قران نشئ راوړلای نو لس سورتونه قران ته ورته خو جوړ کړئ، الله جل جلاله وایې:

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَىٰهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهِۦ مُفْتَرَيَٰتٍ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ.

]سورت هود: ۱۳[

ایا دوی وایي چې پیغمبر دا کتاب له ځانه په دروغو جوړ کړی دی؟- ورته ووایه: "ښه که داسي ده، نو دده په څېر لس سورتونه په دروغو جوړ کړي راوړئ او له الله څخه پرته نور چې هر څوك (ستاسي معبودان) دي، هغوی که د مرستي لپاره رابللی شئ نو راویې بلئ که تاسي (د دوی په معبود گڼلو کښې) رښتیني یاست.

بیا یې نور هم سخت وننگول، چې له هرچا مرسته غوښتی شئ و یې غواړئ او قران ته ورته یو سورت جوړ کړئ.

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَىٰهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّثْلِهِۦ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ.

]سُورَةُ يُونس : ۳۸[

بلکي، ایا دوی وایي چې پیغمبر دا په خپله د ځانه جوړ کړیدی؟ - ورته ووایه: "که تاسي په خپل دغه تور لگولو کښې رښتیني یاست، نو دده په څېر یو سورت تصنیف کړی راوړئ؛ او له یوه خدایه پرته چې نور هر څوك راغوښتلای شئ، د مرستي لپاره یې راوغواړئ"!

وَإِن كُنتُمْ فِى رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِۦ وَادْعُوا شُهَدَآءَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ

]سُورَةُ البَقَرَة : ۲۳[

او که تاسي د هغه کتاب (قرآن) په هکله شکمن یاست چې موږ خپل بنده ته نازل کړی دی، نو د هغه غوندي بوازي یو سورت راوړئ، او له الله پرته خپل (ټول) مرستیاالان هم راوبلئ، که تاسي رښتیني یاست.

کله چې سره له دومره قوته پر کلام جوړونې برلاسي نه شو او ناتوانه شول، الله جل جلاله یې ناتوانې او د قران اعجاز ورته په ډاگه کوي..

قُل لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنسُ وَالْجِنُّ عَلَىٰ أَن يَأْتُوا بِمِثْلِ هَٰذَا الْقُرْءَانِ لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِۦ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا.

]سُورَةُ بنىَ اسرآئيل/الإسرَاء : ۸۸[

ورته ووایه: "که انسانان او پیریان ټول لاسونه یو کړي چې د دغه قُرآن غوندي د کوم شي د راوړلو هڅه وکړي، نو را به یې نه شي وړلای، که ټول یو له بل سره مرسته هم وکړي".

پر خپلې ناتوانۍ او د قران شریف په ځواکمنۍ د ماتې خوړلیو مخالفینو اعتراف.

کله چې ټول فصیح او اورژبي عرب ادیبان و ننګول شول، تر څو را مخې ته شي، د قران مجید یو سورت یا لږ تر لږه د لسو ایاتونو په څېر کلام خلکو ته واوروي،

او دا ننګول/ ننګونه به تر قیامته باقي وي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې هم یو شمیر عربو شاعرانو هڅې وکړي چې قران ته ورته خبرې جوړې کړي خو هیڅا ونشو کولای، حتی چې کوم شعرونه به د نامتو شاعرانو پر خانه کعبه را ځړلول شوي و، )چې اوس هم په کتابي بڼه شتون لري او په سبع المعلقة شهرت لري(، هغه یې لري کړل، بیا په تېره لوی دښمن ولید بن مغیره چې استهزاءا به یې ویل: د تعجب وړ خبره خو دا ده چې زه) ولید( او زما انډیوال ابو مسعود ثقفي سره له دې چې زه د قریشو سردار او مشري یې پر غاړه لرم او ثقفي د ثقیف قبیلې مشري لري؛ بیا هم موږ دواړه پرېښوول کیږو او وحي پر محمد نازلیږي؟!

یو وخت همدا ولید اعتراف کوي... خپلو خپلوانو ته وایې: څه چې تاسو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حق کې وایئ، ټول له پلوه دروغ دي، هغه نه کاهن دی، نه مجنون، نه شاعر دی نه ساحر، قسم په خدای د محمد په کلام (قران) کې عجبه خوند او ذوق دی، ناشنا ښکلا او روښنایې لري، د ده د خبرو جرړ بې حده زیات تازه دی او ښاخونه یې میوه دار دي.

د عتبه بن شیبه اعتراف.. کله چې د رسول الله تره حمزه رضي الله عنه ایمان راووړ او ورځ په ورځ د مسلمانانو شمیره زیاتیدله، د قریشو مشرانو مشوره وکړه او له رسول الله ص سره د خبرو لپاره یې عتبه وټاکی، تر څو صلح وکړي.

عتبه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی او په تقریر یې پیل وکړ، وایې: ستا په حسب ونسب کې د شرافت او قدردانۍ هیڅ شک نشته؛ خو له بده مرغه، تا زموږ تر منځ واټن پیدا کړ، زموږ د بتونو سپکه دې وکړه، پلرونه او نیکونه دې راته احمقان معرفي کړل، زه چې اوس راغلی یم څه درته ویل غواړم!

رسول الله صلی الله علیه وسلم و ویل: وایه! زه یې اورم.

عتبه و ویل: زما وراره! له دې خبرو دې هدف څه دی؟

که دې شتمني هدف وي، نو موږ ټول به دومره شتمني درته راغونډه کړو چې لوی نه لوی شتمن به دې هم سیال پاتې نشي؟ او که دې واده هدف وي، نو چې کومې مېرمنې او څومره مېرمنو سره غواړې، مونږ یې درته ودوو؟

او که مشري یا درانوی مو هدف وي، موږ دې خپل مشر ټاکو؟ او که ناروغ یاست، درملنه دې کوو؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم و ویل: ابو الولید! (د عتبه کنیه ده) خبرې دې پوره شوې؟ عتبه ویل: هو. رسول الله و فرمایل: نه مو شتمنۍ غواړم، نه مو حکومت او سرداري... لنډه دا: هیڅ مو نه غواړم، زه د الله رسول یم، پر ما یې قران نازل کړی، او تاسو خوا ته یې پېغمبر لېږلی یم، او بیا یې د حم السجدة لومړي ۱۳ ایاتونه تلاوت کړل، کله چې رسول الله صلی الله علیه

وسلم تلاوت ختم کړ، و يې ویل: د څه دې چې اوریدل غوښتل وا دې اوریدل، اوس ورځه نور ستا خوښه.

عتبه چې خپلو ملګرو ته ورتلی، عتبه هغه عتبه نه و، ابو جهل چې عتبه ولید و يې ویل: عتبه هغه عتبه نه دی، عتبه بې دينه )!( شوی.

عتبه ملګرو ته وایې: ما د هغه کلام واوریده، قسم په خدای هغسی کلام مې هیس وخت له بل چا نه دی اوریدلی!!

نه خو هغه شعر دی، نه سحر او نه هم کهانت، هغه یو بل ډول شی دی!!

زما قومه! که مې خبره منئ نو محمد خپل کار ته پریږدئ! په الله قسم کوم کلام مې چې تري واوریده په لنډ وخت کې به جلا ستروالی ولري...

پر زړونو یې اغېزمنتیا او اثر

طفیل بن عمرو دوسي رضي الله عنه له اسلام راوړلو وړاندې هم ستر شاعر، ځیرک، هوښیار، میلمه پال او شریف النسب و، له قریشو سره یې تړون درلود، هغه مهال چې رسول الله پر تبلیغ بوخت و، مکې ته راغی، د قریشو څه کسان ورته غونډ شول او د رسول الله په هکله ورته وایې: په موږ کې یو کس پیدا شوی، ټول قوم کې یې تفرقه زیږولې، خبرې یې سحر او جادو ته ورته دي، دپلار او زوی تر منځ، د ورور او ورور، د میړه او میرمن تر منځ بیلتون راولي، ګوره! ځان تري ساته! موږ وېره لرو هسې نه ستا او د قوم تر منځ دې شخړې را پورته شي.

طفیل رضي الله عنه وایې: قریشو دومره و ډار کړم چې غوږونو کې مې ټوټې کیښودي تر څو د رسول الله له کلام اوریدو بچ پاتې شم؛ خو دا چې انسان په خبل فطرت کې، حقیقت پسي لالهانده او پلټونکی مخلوق دی، تل هڅه کوي چې حقیقت را برسیره او واقعیتونه درک کړي او په دې ډول د پایښتي بریا او تلپاتي خوښۍ پر لور پرمختګ وکړي، په تېره بیا دا ډول انسان چې تل يې فکر تر پرمختګ او بریا پوري نښتی وي، ورته اړینه ده چې د داسي کلام چې مخالفین یې له اوریدلو وېره لري، باید واوریدل شي او ژور غور پکې وشي، طفیل رضی الله عنه هم ځنډ و نکړ، له ځان سره يې ویل: زه خو هوښیار سړی یم، لوی شاعر او د هیڅ خبرې ښه والی او بدوالی را څخه پټ نه دی، زه به دا کلام ضرور اورم که باوري او خوږ کلام و، منم یې، او کنه نه يې منم.

طفیل وایې: حرم ته ولاړم، رسول الله صلی الله علیه وسلم په عبادت بوخت و، له فارغیدو وروسته روان شو، زه هم ورپسي شوم، له کیناستو سره سم مې کړه: ستا قوم ستا په اړه داسي او هغسي خبرې کوي، حتی زه یې دې ته اړ کړم چې خپل غوږونه دپ کړم تر څو ستا کلام وانورم، تاسو خو ماته د خپل دین په اړه معلومات راکړئ او لږ راته پر تاسو نازل شوی کلام واوروئ! رسول الله ص ورته اسلام وړاندي کړ او سورت اخلاص او معوذتین یې ورته واورول. طفیل له اوریدو سره سم کړل: قسم په خدای له قران مجید مې ښکلی کلام او له اسلام څخه زیات معتدل دین، مې نه دی لیدلی او هماغه مهال مسلمان شو.

همدا ډول ابن الدغنه چې ابوبکر الصدیق رضي الله عنه له پاره له مشرکینو پناه وغوښته هغوی پنا ورکړه خو تړون یې وکړ چې ابوبکر به په لوړ غږ تلاوت نه کوي، او په خپله به مشرکینو اعتراف کاو چې: به لوړغږ د قران تلاوت موږ ته تاوان رسوي، پر دې سربیره موږ پر خبلو مېرمنو او ماشومانو وېرېږو چې د قران په اوریدل به مسلمانانې شې.

همدا ډول د عمربن الخطاب رضي الله عنه د اسلام راوړلو حقیقي سبب که هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دعا ده، خو ظاهري سبب یې قران ده. او.....

هغه چې یوه جمله یې کولی شي ژوند بدل کړي...



د لسم کال د بعثت د شوال اخري لسيزه کې چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم له طايف څخه پرهارژلی او له ډول_ډول کړاوونو ګاللو وروسته بېرته ناهيلی راستون شو، پر لاره د عتبه او شيبه د بڼ د ونې سيوري ته تم او دم اخيستو له پاره کښيناست، مبارک لاسونه یې لپه کړل، اشرف المخلوقات، ستر خالق ته په زاريو و، ویل یې: اللهم اليک أشکوا ضعف قوتي وقلة حليتي و... که له یوې خوا مستجاب الدعوات دی له بلې خوا مظلوم، مسافر او فردیسی دی.

الله جل جلاله یې دعا قبوله کړه، له ټولو سرسخت دښمن عتبه او شيبه خپل غلام (عداس) را غواړي، په کاسه کې د انګورو اوښکالي ور کوي او ورته وايې: دا هغه له ونې لاندې ناست سړي ته ور وړه! او ورته وا: هرو_مرو څه ناڅه تري وخوره.

عداس هم د بادار د حکم پرځای کولو په پار انګور راوړل او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې مخې ته کړل.

رسول الله صلی الله علیه وسلم بسم الله الرحمن الرحيم ويلو وروسته په خوراک پيل وکړ.

عداس د جملې (بسم الله) ښکلا هېښ کړ، اوريدو سره سم یې لوړه وکړه او ویې ویل: په الله قسم دا ډول ښکلی او زړه راښکونکی کلام مې دلته له هیچا نه دی اوریدلی؟!

رسول الله صلی الله علیه وسلم وپوښتل: ته د کوم ځای اوسیدونکی یې؟ او دین دې څه دی؟

عداس: زه د موصل د نينوی سيمې اوسيدونکی او دين مې نصرانيت دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم و ویل: دهغې نینوی یاست، چرته چې د الله جل جلاله نیک بنده یونس بن متی علیه السلام اوسیدلی؟

عداس و ویل: تاسو د یونس په اړه څه علم لرئ؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم و ویل: هغه نبي وو، زه هم نبي يم.

عداس د رسول الله تندی مبارک لاسونه او پښې ښکل کړل او کړه یې: أشهد أنک عبدالله ورسوله.

]ابن سيدالناس عيون الاثر: ټوک ۱ / مخ ۱۳۴[

]سيرت ابن هشام: ۱۴۶/۱[

پورته واقعه کې د عداس د اسلام راوړلو لامل د قران د یوې جملې (بسم الله) اوريدل و، چې د عداس ژوند یې له کفر څخه اسلام ته بدل کړ، وروستی خبرو یې تر منځ تعارف راوستی او بس.

پای: قران شریف داسې کتاب دی چې جلا ډول کلام او ځانګړی خوند او ذوق لري، تر دې چې ټول عرب یې فصاحت، بلاغت او ځانګړي خواک ته مات او پر خپلې ناتوانۍ معترف شول، او دا دی څوارلس پیړۍ تېرې شوې خو څوک ونه توانيدله چې مقابل یې وکړای شي.

و ما علینا الا البلاغ



# کلورینې پاڼې

## سپین کتار دطالبانو

# رضوان الله (فیضاني)

مالیــدلی دی گــوزار د طالبــانو
بوړنــوونکی دی هــر وار د طالبــانو

د الله د دیــن دښــمن مــرداروي تــل
الجهــاد دی پــاک شــعار د طالبــانو

د زړه مینــه پــرې مــاتېږي چــې روان وي
ښــکلی ښــکاري ســپین کتــار د طالبــانو

پــه کفــارو بانــدې تنــدر د اســمان دی
شرنگېــدونکی ذوالفقــار د طالبــانو

رب دې تــل لــري اباد پــه مــخ د ځمکــې
هــر یــو کلــی هــر دیــار د طالبــانو

چــې عظمــت تــه یــې ســلام ملایکــان کــړي
معــزز دی ســپین دســتار د طالبــانو

تــور ټوپــک چانتــه پیکــا او شریدونــه
عجیبــه دی دا ســینگار د طالبــانو

(فیضــاني) پــه مینــه مینــه بانــدې لیکــه
غزلونــه او اشــعار د طالبــانو

## دار فلسفه

# عرفـاني

نــږدې شــوې مو ساحل ته ده بېړۍ
ډېر دی شــکر چــې وړی مو شوه شړۍ

موږ د پــاکې تانــدې مینې عاشقان یو
مست جنــون مومــاتې کړې دي کړۍ

فلسفه د دار مــو مخــکې لا ویــلې
ځکه نن ورځو خوشــحال هسکه غړۍ

د رقیب پرتنــدي داغ زمــا د خنجر دی
لا روغ نــدی تېــرې شوي پرې پېړۍ

که جــهان ټول پاړوګر او ښاماران شي
د موســی امســاته دي یــوه مــړۍ

عقیده د وحــدانیت مونــږه خپره کړه
په خبــرو مو کــړه پوه ګونګه نړۍ

پر هــواره مــو ولاړ دي چــنارونــه
جک جک غرونه مــو لــري غتې خېرۍ

قره قول،پکول سم زېب ورســره نــه کا !
(عرفاني) سره کــړي خوند شخه پکړۍ

# لا خو شته سرونه

هاشمي

۲۷-۰۶-۲۰۱۶

تا نه به یې ځار کړو لا د ځار سرونه پاته دي
خدایه! ستا په لار کې ستا د لار سرونه پاته دي

ټول منصور منصور یو په ښکاره درته بدل ښکارو
مه نړیږه داره لا د دار سرونه پاته دي

کفره! ته به ستړی شې خو موږ به په خندا درځو
دلته د هدف د انتظار سرونه پاته دي

تاو کړه د فولادو کلاکانې ترځان تاوي کړه
ډیر د موټربم د سخت ګوزار سرونه پاته دي

موږ د استشهاد بلبلان، موږ به ځو ګلونو ته
زاغه! تا ته تل د وچ چنار سرونه پاته دي

اې د ازادی ناوې! بد رنګه چیرته مه اوسه
ستا د غاړې هار ته د سینګار سرونه پاته دي

موږ د سپین بیرغ لپاره ځو تر سپین بیرغ لاندې
کله به مو بیل کړي، شته د کار سرونه پاته دي

اې قربانی! تا ته مو ساتلي ډیر سرونه دي
یو د (هاشمي) او نور بیسار سرونه پاته دي

# ازادي او خپلواکي

ملنګ

نن عجیبه غوندي یو فکر راغلو
دې ازادۍ پوري نن ذکر راغلو
مونږ اوریدل به له پلرونو څخه
نقل یې کړو له تیرو ختونو څخه
کابل کې شیخ دی او سیاف نو میږې
هغه به ویل چې مجاهد یمه زه
نن د یهودو سره خوا کې ناست دی
دا خپل ضمیر هم ورته بد نه وایي
ورسره مل دي ورته لاره ښیي
زما د مرګ ورته جواز ور کوي
اوس خو ملت ورځیني ښه خبر دي
چې د افغان خاوره ناموس خرڅوي
په خپلواکیو راته لوبي کوي
دروغ به نه وي، دې انځور ته ځیر شئ
ورته قسم ور کړئ مفتي صاحب ته
قِبلې ته مخ کړه حقیت ووایه
چې هغه تا کومه دعوه کوله
ها د اسلام او د جهاد په نامه؟
له عربانو دې چنده کوله؟
د حریت او ازادۍ په شعار
ته د لکونو افغاني زلمیانو
هغه تنکیو شهیدانو ته چې
د ستا په خوله یې کړل ځانوه قربان
نن دې هغه مخې ته نه ودریږي
ته د هماغو قاتلانو ظالمانو سره
په یوه ټغر باندي شراب شړوپوې
ستا دي قسم وي خپل ضمیر هم درته
کله څه ستغې سپورې نه دي ویلي
ملنګ کاکا درباندي پوه یمه اوس
چي ته بې ننګه بې غیرت وختې
تاسو تکړه شی ازادي ولمانځئ

# ايا افغانستان کې

## امریکا پرمختللي دفاعي سیستم دکومو اهدافو لپاره نصبوي؟

رحيمي

دخبري راپورونو په اساس د هغه وروسته چې دامریکا ولسمشر اوباما په افغانستان کې دخپلو میشت عسکرو په شمیر او لوجیستکي اکمال کې دزیاتوالي پریکړه وکړه ، امریکا یې پوځي چارواکو ددي سره هم مهال په افغانستان کې د پرمختللی دفاعي سستم د نصبولو هوډ هم څرګند کړ!!

درسنیو له قوله: امریکا په پام کې لري دا پرمختللی دفاعی سیستم دپروان ولایت د باګرام هوائي ډګر جنوب ته کوه صافي ولسوالی په مربوطاتو کې جوړ اوعیار کړي

یاده ولسوالۍ د پلازمینې کابل په ګډون باګرام هوئي ډګرته څېرمه په لنډ واټن کې واقع مهمه ستراتیژکه نقطه ده...

!! دخبري منابعو په وینا: امریکایانو سرله اوس له یادې سیمې څخه دماینونو پاکولو لپاره د یو افغاني شرکت سره د ۵۰ملیونه ډالرو په بیه یوتړون هم لاسلیک کړی دی.

دافغانستان او سیمې دسیاسي کتونکو په ګمان امریکا یان په افغانستان کې دخپلو خواکونو داوسلو طویل المدت عزایم او پلان لري،هغوی په لنډه موده کې دوتلو اراده نلري ، هغه خبرې او ژمنې چې دڅو کلو راهیسي امریکایې چاروکو په میډیا کې ګردانولې دروغ وې .

دهغوی په نظر امریکا له لومړي سره دافغانستان دارضي تمامیت دایمي اشغال ته غله وه او دهمدې موخې لپاره یې دیوولسم ستمبر په پلمه ناروا یرغل وکړ.

هغه غرض چې امریکا دخپل یرغل دلیل په توګه وړاندې کاوه، دادی شپاړس کاله جګړې وروسته یې هم یادوي او هره ورځ په همدې یرغلګر عسکریې دمسلمانو وینې دابو پشان تویوي!

هو! امریکا چې افغانستان کې کوم پرمختللی دفاعي سستم نصبول غواړي ، هغه ته افغانستان دخپلې دفاع لپاره ضرورت نلري دا فقط امریکا په منطقه اوسیمه کې دخپلو شومو استعماري اهدافو خوندي کولو په غرض فعالوي...

امریکا غواړي دافغانستان له مهم جغرافیوي استقامت نه په ناوړه ګټه اخستلو دټولو ایشایې هېوادو مهارکولو کار تري واخلي! د ایشایي هېوادو امن اوثبات وترورږي ، په خاصه توګه هغه هېوادونه چې په نړیواله سطحه په سیاسي اقتصادي او پوځي ډګر کې دامریکا سره سیالان او حریفان ګڼل کېږي لکه چین او روسیه ترخپل رعب او تاثیر لاندې راولي او ورته دا اجازه ورنکړي چې هغوی په نړیوال ډګر کې دامریکا د استعمارې موخو ننګولو ته بډې ووهي!

اوبل ددې استقامت نه څخه کوي څو د هغو ایشایې هېوادونه د ستونزو او ګډوډیو اور ته لمن ووهي کوم چې ترډې مهاله د نسبي امنیت او ارامی نه برخمن دي او هغه هېوادونه چې امریکا تورنوي او وربانډې نیوکې کوي لکه ایران او... ترخپل استخباراتي څار او پوښښ لاندې ونیسي!

نو له شک پرته د امریکادغه اراده دټولې منطقې لپاره ګواښونه رامنځته کوي او ورته جدي ستونزې پیدا کوي ،اونه به ددي سستم نصبول افغانستان لپاره دخوښی ارمغان ثابت شي ، امریکا به ددې فرصت نه په ناوړه ګټه په سیمه کې خپلې استعماري پریکړې او ارادې تحمیلوي اودسیمې ولسونه به دخپلو نامشروع غوښتنومنلوته اړباسي

# داسلام اولویدیځ کلتوري جنګ!

شيخ الحديث مولانا زاهد الراشدي
ژ:سجاد

په دا وروستيو کې دامريکائي کانګرس يوې پخوانۍ ويانـدې (نيـوټ کنګـرچ)ويلي: هغـه مسـلمانان چـې پـه شريعت باور لري له امريکا نه دي هغوی وشړل شي .

دهغې ددې څرګندونو دمخه دامريکـا د ولسمشرۍ لپاره کانديد (ډونلډ ټرمپ)هم امريکـا تـه دمسـلمانانو پـه ورتلو دبنديز لګولو رايه وړاندې کړې وه...

د کانګرس پخوانۍ ويياندې (نيـوټ کنګرچ)دمرکـې څو نور بارزټکي دادي: غربي تهـذيب دجګـړې پـه حالـت کې قرارلري! شريعت د مغربي تهذيب سره سمون نه لـري! هغه روڼ آندي مسـلمانان چـې دشريعـت پـه قوانينـو بـاور ونلري،مونږه په خوشالۍ هغوی قبلوو! نومـوړې دامريکـا دمتحده ايالاتو حکومت ته نظر ورکـړی چـې پـه امريکـا کې دجوماتو نو څارنـه دې ويـل او دهغـو ويـب پـاڼو چـې سخت دريځې ستايي چلونکي دي زندانوته وليږدوي!

دامريکــائي کــانګرس دپخــوانۍ ويانــدې يــادې څرګندونې يواځې نن مونږ دلويديځ دکومې مشرې دخـولې نه اورو بلکې ددينه وړاندې مو هم لـه ګڼـو امريکـايي او اروپايي مشرانو لـه خولـو دغـه ډول څرکنـدونې اوريـدلي البتـه دنيـوټ کنګـرچ دخـبرو ځانګړتيـاوې دادي چـې د ديپلوماسۍ دلحاظولو پرته يې هرڅه نيغ او په ښکاره ويلي لکه:

* غربي تمدن او تهذيب پـه جنګـي حالـت کـې قـرار لري

* اسلامي شريعت دغربي تهذيب سره سمون نه لري.

*هغـه مسـلمانان چـې پـه شريعـت عمـل کـوي مونږ(امريکايان) يې نشو زغملی.

*هغه روڼ آندي چې مغرب يـې يـادوي ، مطلـب يـې دشريعت له حکمونو اوقوانينو نـه لاس پـه سرکيـدل دي او ددې څخه په کمه بيه غرب هيڅکله راضي ندی.

زمونږ دختيځو هېواد ځيني پوهان او دنظر خاندان لا تراوسـه ددې خـبرې منلـو تـه تيارنـدي چـې: دلويـديځ او مسلمانانو ترمنځ اوسنی کشمکش کلتوري او ثقـافتي دی !د هغوی په اند: روان کشمکش کلتوري او ثقافتي ندی بلکـې د اقتصادي ګټـو وټـو جنـګ دی، دپرمختلليـو ولسـونو اود بيرته پاتي هېوادو ترمنځ کشمکش دی، چـې پکـې اسـلامي هېوادونه اوولسونه دنه پرمختګ له امله مغلـوب دي او پـه کلتوري ارتقاء کې دلويديځ سره دنه ملګرتيا کولو لـه املـه بيرته پاتي دي.

خو نيوټ کنګرچ دا خبره په څرګندواوسـپينو ټکيـو کې کوي چې: روان جنګ کلتوري دی؛ چې يولور لويـديځ دی کـوم چـې د ساينسيـ پرمختياوو،عسـکري پياوړتيـا اقتصادي برترۍ اوپه ميډيا دواک لرلو په وجه دنړۍ ګڼ هېوادونه اوټولنې ترخپل سيوري لانـدې کينـولي اوبـل لـور اسلامي هېوادونه دي کوم چې پخپل ټول تـوان دخپلـې بقـا لپاره په جګړه بوخت دي اوداخبره تجربـو ښـودلې او لکـه دلمر پشان روښانه ده چې هر هغه ثقافـت اوکلتـور دبشري

ټولنې دقيادت کولو وړتيا لري، کوم چې له ستونزمنو حالاتو سره د ډغر وهلو حوصله ولري او دبشري ټولنې دمشکلاتو او قضاياوو دحلولو صلاحيت ولري ، دا څه زمونږ دعوه نده بلکې دفطرت داصولو او دتاريخي تعاملاتو غوښتنه ده.

هو! دکانګرس دپخوانۍ ويناندې داخبره دپام وړده چې شريعت او مغربيت سره سمون نه خوري!دا داسلامي نړۍ دهغو پوهانو لپاره دفکر اوغور وړده څوک چې دتيرو دوه پيړيو راهيسې- په دې هڅو او کوښښ کې لګيادي څو اسلام دغربي کلتور سره هم آهنګ وګرځوي!اوکوښښ کوي چې داسلامي احکامو اوقوانينو لپاره داسې تعبيرات ولټوي کوم چې دغربي قوانينو او حکمونو سره ورته والی ولري خو دغه ښاغلي دومره پوهه نلري چې وفمهوي داسلامي قوانينو او تمدن اساس په وحي دی او په اسماني لارښوونو ايمان اوباور دی او دغربي کلتور اوتهذيب اساس له اسماني لارښوونو څخه انکار او دهغو نفي ده! دالله تعالی ارشاددی: "کتاب انزلناه اليک لتخرج الناس من الظلمات الی النور"داکتاب مونږ په تاباندې ددې لپاره نازل کړی دی چې ته خلک له تيارو څخه وباسې درڼا او نور لورته يې راولې.يعنې اسماني لارښوونو ته رجوع اسلام روڼ اندې بولي، او دلويديځ په اند: داسلامي قوانينو او احکامو څخه انحراف او لاس په سر کيدل روڼ آندي ده؛ مطلب دادی هرهغه څيز ته چې اسلام روڼ آندې وايې. دلويديځ په نظر هغه جهل او ظلمات دي.اوکوم څه ته چې لويديځ روڼ اندې وايي هغه اسلام په جهل او تاريکې تعبيروي ، له دې وجې ددې دواړو ترمنځ دمطابقت او يو والې لپاره دلارو لټول او و کوښښونه خام خيالي او بولاحاصل کاردی.هم ديته په کتو پخپله لويديځ داسلامي شريعت ديوې برخې منلو ته هم تيار ندی داخو لا پريږده چې په اسلامي هېوادو کې يې نفاذ ورته له زغم بيرون دی چې ترډيره يې په دې برخه کې رويه دضد او تعصب څخه ډکه ده چې وخت په وخت دډونلډ ټرمپ او نيوټ کټګرچ په څېر مشرانو له خولو بيرون ته سرايت کوي.

اوس ددې په ځای چې مونږ د ډونلډ ټرمپ يا نيوټ کټګرچ دڅرګندونو په غندلو کې وخت تير کړو ددې په ځای غوره داده چې دزمکني حقيقت په توګه اومنو او دمسلمانانو د سمې رهنمائي لپاره لار ولټوو،مونږ ديوې مودې راهيسې دفکري کړيو او علمي مرکزونو څخه په دې غوښتنه بوخت يو چې داسلامي کلتور او غربي کلتور ترمنځ شته نړيوال کشمکش دعلمي اوفکري پلوه د روښانه کولو اړتيا مخ په زياتيدو ده په ځانګړي توګه دغربي کلتور په اساس دجوړ شوي مروج نړيوال نظام او دهغه داحکامو اوقوانينو واقعبينانه څېړنه او ارزيابي اوپه څرګندو ټکيو کې داښکاره کول اړين دي چې دقرآن اوسنت په رڼا کې کومه خبره دمنلو وړده؛ او دکومې دمنلو ګنجايش نشته؟دلويديځ نظر پوره څرګند دی چې هغه ته په شريعت باندې عمل په هيڅ صورت دمنلو وړ ندی او نه يې منلوته تياردي،دهغوی په ځواب کې زمونږ مسؤليت دادی چې داسماني لارښوونو او دبشري ټولنې اجتماعي ګټو په پام کې نيولو سره دلويديځ وال کلتور تيروتنې اوغلطۍ رابرسيره کړو او دهغو له امله چې بشريت ته کوم زيانونه رسي هغه په ګوته کړو اوپه مقابل کې يې داسلامي شريعت افاديت او ضرورت په دليل او منطق سره وړاندې کړو څښتن تعالی دې وکړي چې زمونږ فکري کړۍ ديني مراکز اوعلمي مراجع ددغې اړتيا په ادراک لرلو سره دداسې يوه علمي ګام د پورته کولو کلک هوډ وکړي

آمين يارب العالمين

# د ابن ماجه رحمه الله ژوند او تالیفات

سید سعید

د الصحاح الستة د شپږم کتاب( سنن ابن ماجه) مؤلف نومیالی حافظ او لوی محدث ابو عبدالله محمد بن یزید ماجه قزویني ربعي مشهور په (ابن ماجه رحمه الله) په ۲۰۹هق کال په قزوین کې پیداشوی دی.

ابن ماجه رحمه الله په خپل ښار قزوین کې دجیدو علماوو څخه داحادیثو درس پیل کړ،ډیر احادیث یې حفظ کړل، داحادیثو سره د ډیر شوق له امله یې د سفر موزې په پښو کړې،له قزوین څخه حجاز،شام،خراسان،عراق او مصر ته ولاړ او هلته یې له مختلفو نومیالیو علماوو سره داحادیثو په دورو او درسونو کې ګډون وکړ.

امام ذهبي په سیر اعلام النبلاء کې لیکي چې ابن ماجه نومیالی حافظ او لوی مفسرؤ، په سنن،تفسیر او تاریخ کې ښه مصنف او په خپل وخت کې د قزوین تر ټولو لوی حافظ ؤ.

دالوافي بالوفیات کتاب مصنف صلاح الدین خلیل لیکي چې: حافظ ابو عبدالله محمد بن یزید ابن ماجه دسنن،تاریخ او تفسیر دکتابونو مصنف او دقزوین لوی محدث ؤ.

علماء د امام ابن ماجه رحمه الله د فقهي مسلک په اړه مختلف نظرونه لري، د حضرت شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله په نظر ابن ماجه د امام احمد بن حنبل رحمه الله مسلک ته رجحان درلود.

شاه انور شاه کشمیري رحمه الله په دې نظر ؤ چې ابن ماجه د امام شافعي رحمه الله د مذهب پیروي کوله.

### د ابن ماجه رحمه الله استادان:

علی بن محمد طنافسی، عبدالله بن معاویه، هشام بن عمار، محمد بن رُمح، سوید بن سعید، عبدالله بن جراح قهستانی، مصعب بن عبدالله بن زبیر، إبراهیم بن محمد شافعی، یزید بن عبدالله یمامی، جُباره بن مغلس، داؤد بن رشید، إبراهیم بن منذر حزامی، أبی بکر بن أبی شیبه، محمد بن عبدالله بن نمیر او....

### دابن ماجه رحمه الله شاګردان:

د ابن ماجه څخه هم لویو علماوو احادیث روایت کړي دي، دبېلګې په ډول محمد بن عیسی أبهری، ابو عمرو أحمد بن محمد بن حکیم مدائنی، علی بن إبراهیم بن سلمه قطان، سلیمان بن یزید فامی قزوینی او ابو طیب أحمد بن روح بغدادي یاد ولای شو.

### د ابن ماجه رحمه الله تالیفات:

- سنن ابن ماجه
- تفسیر القران الکریم
- کتاب التاریخ

### سنن ابن ماجه:

دابن ماجه رحمه الله مشهور تالیف سنن ابن ماجه دی،سنن ابن ماجه د احادیثو د شپږو صحیح(الصحاح

السته) کتابونوشپږم کتاب دی، لومړنی کس چې سنن ابن ماجه يې د مبارکواحاديثو په موجوده شپږو معتبرو کتابونو کې حساب کړی ابو الفضل طاهر بن مقدسي دی.وروسته حافظ عبدالغني په کتاب الاکمال په اسماء الرجال کې سنن ابن ماجه داحاديثو شپږم صحيح کتاب ګڼلی دی.

امام ذهبي په سير اعلام النبلاء کې ليکي چې: سنن ابن ماجه پر ۳۲کتابونو او ۱۵۰۰بابونو مشتمل دی او ۴۰۰۰احاديث پکې تدوين اوخوندي شوي دي،استاد محمد فواد عبدالباقي وايي چې په سنن ابن ماجه کې ټول ټال ۴۳۴۱ احاديث راټول شوي دي،په سنن ابن ماجه کې درا ټولو شوو احاديثو له جملې ۳۰۰۲ احاديث د صحاح سته پنځو لومړنيو کتابونو هم را نقل کړي او پاتې ۱۳۳۹ احاديث د صحاح سته په پنځو کتابونو کې نشته، دهمدې زوائدو احاديثو په هکله ويل کيږي چې ۴۲۸ احاديث صحيح الاسناد،۱۹۹حسنه الاسناد،۶۱۳ ضعيف الاسناد او ۹۹واهيه الاسناد( منکره\ مکذوبه) دي.

دابن اثير رحمه الله په وينا ابن ماجه په فقهه کې ګټور کتاب دی،خو ددې ښېګڼې سره سره ضعيف احاديث هم پکې کم نه دي.

ځيني علماء په سنن ابن ماجه کې د بعضو ضعيفو احاديثو د درج له امله همدغه کتاب په صحاح سته کې نه شمېري،دوی د سنن ابن ماجه پر ځای د امام مالک رحمه الله مؤطاء د صحاح سته شپږم کتاب ګڼي.

پر سنن ابن ماجه خورا لويو عالمانو شرحې او تعليقات ليکلي چې د ځينو نمونه يې په لاندې ډول دي:

- شرح ابن ماجه د حافظ علاوالدين المغلطايي حنفي اثر
- شرح ابن ماجه،د علامه ابن رجب زبيدي اثر
- ما تمس إليه الحاجة على سنن ابن‌ماجه،د شيخ سراج عمر بن على الملقن تاليف
- الديباجه شرح سنن ابن‌ماجه،د شيخ كمال محمد بن موسى دميري تصنيف
- شرح سنن ابن‌ماجه،د حافظ برهان ابراهيم بن محمد معروف به سبط ابن‌العجمى اثر
- مصباح‌الزجاجة،د علامه سيوطى تاليف
- شرح سنن ابن‌ماجة،د شيخ ابوالحسن محمد بن عبد الهادى سندى حنفى اثر
- إنجاح الحاجة بشرح سنن ابن‌ماجه،د شيخ عبدالغنى مجددى دهلوى حنفى اثر
- حاشيه بر سنن ابن‌ماجه،د مولانا فخرالحسن ګنګوهی تاليف.
- مفتاح الحاجة، د شيخ محمد علوي حاشيه

**دابن ماجه رحمه الله وفات:**

د اسلامي نړۍ ستر حافظ،محدث او عالم او د الصحاح السته دشپږم کتاب (سنن ابن ماجه) مؤلف امام ابن ماجه رحمه الله په ۲۷۳هق کال د ٦٤ کلونو په عمر په قزوين کې وفات او همالته دفن شوی دی.

ماخذونه: ويکي پيډيا

بيداري اسلامي

عقيده

او.....

# د ازادۍ دورځې په پلمه ......!

مشفق حریت مل

ازادي او خپلواکي هغه څه ته وايي چې يو څوک په خپله ځمکه او خپل ژوند کې د بشري اصولو سره سم د خپل واک او اختيار خاوند وي او د بل چا تر اغيز او امر لاندې نه وي. د ژوند له پاره ازادي يو ستر نعمت دی او له ازادۍ پرته ژوند بې معنا بې خونده او له اندېښنو ډک وي.

زمونږ ګرانو هيوادوالو ته به دا خبره ډېره سخته تمامه شي چې څوک ورته ووايي چې تاسو خپلواک نه ياست، ازادي نه لرئ، دا خبره هم د افغانانو د ازادۍ د احساس ښکارندوی کوي چې د غلامۍ په ځای خپلواکۍ ته ترجيح ورکوي؛ خو متاسفانه چې موږ لاهم خپلواکي او ازادي نه لرو او لاهم د اشغال له سپيره سيوري لاندې ژوند کوو.

کله چې يو انسان ناروغ وي، نو هيڅوک به ورته څوک روغ ونه وايي او که څوک يو ناروغ ته روغ وايي خلک به ورباندې د ليوني ګومان وکړي، همدا مثال هم د يوه هيواد د ازادۍ او اشغال دی. هر کله چې يو هيواد اشغال وي دا يو ناروغ او رنځور هيواد دی؛ خو کله چې له اشغال څخه ازاد شي نو بيا دغه هيواد روغ رمټ وي او څوک ورته اشغال شوی او ناروغ نه وايي.

د ۱۲۹۷ لمريز کال د زمري د مياشتې ۲۸ مه نېټه چې د ۱۹۱۹ زيږديز کال د اګست د مياشتې له ۱۹ مې نېټې سره برابره ده دا هغه تاريخي او وياړلې ورځ ده چې افغانستان له انګريزانو څخه ازادي ترلاسه کړه نو هغه مهال مونږ خپل ګران هيواد د يوه ازاد او خپلواک هيواد په توګه تر هغه وخته درلود چې بيا روسانو په افغانستان يرغل وکړ، ګران هيواد يې اشغال کړ او د افغانانو ازادي يې وتروړله.

په افغانستان د شورويانو يرغل هغه څه وو چې د ګران هيواد ازادي يې يو ځل بيا له منځه يوړه؛ خو د وخت مخلصو مجاهدينو په کمزورو وسلو خو قوي ايمان او هيوادنۍ مينې شوروي دښمن ته نه هيرېدونکی غاښ ماتی ځواب ورکړ، شوري اتحاد يې ټوټه کړ او افغانستان يې د هغوی له ناپاکو منګولو څخه خلاص کړ.

افغانستان د خپل اهميت له مخې هر وخت د نړۍ د زورواکو او بدبينو دښمنانو تر يرغلونو راغلی دی چې وروستی يرغل يې هم د امريکا په مشرۍ د ناټو ځواکونو يرغل دی چې د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر راهيسې يې تر اوسه د ګران هيواد خاوره نيولې ده او دلته يې د افغانستان په مظلوم ملت هغه ظلمونه وکړل چې له امله يې په ميليونو افغانان اغيزمن شول او لاهم ددغه ناتار شور د افغانانو ژوند نا ارامه کړی دی.

ځنګه چې یوه پېړۍ مخکې افغانستان د انګلیسي یرغلګرو تر ناتار لاندې و نن هم همغه شان د انګلیسانو په ګډون د نړۍ د لسګونو هیوادونو یرغلګر عسکر په افغانستان کې شتون لري چې دلته هر څه د هغوی په اشاره او حکم ترسره کیږي، هیڅوک نه شي کولای چې د دوی له اجازې او خوښې پرته قدم پورته کړي، د هیواد د چارو واګې، اختیارات، ځمکه او هوا ټوله همدوی نیولې ده او هیڅ ازادي غوښتونکي افغانان ترې په کرار نه دي، نو ځنګه مونږ ویلای شو چې مونږ خپلواک یو او مونږ ازادي لرو؟

اشغال د هغې بدبختۍ او سپیره توب نوم دی چې په هر هیواد او سیمه کې رامنځته شوی دی، هغه سیمه یې په هر لحاظ ځپلې ده، په افغانستان کې د افغانانو مرګ ژوبله، بدبختي، نا امني، بمبار، چاودني جنګونه او وررور وژنه دا ټول د روان یرغل لامل دی چې افغانان یې له بدبختیو او اندیښنو سره مخ کړي دي. اوس که څه هم بهرني عسکر په افغانستان کې په ځمکنیو جګړو کې برخه نه اخلي؛ خو دوی دومره وکړل چې طالب او عسکر یې چې له دواړو لوریو افغانان دي په جګړه کې سره ښکیل کړل چې اوس جګړه ټوله افغانۍ ده او له هر لوري د افغان کورنۍ ته د مرګ ژوبلې درد رسیږي، چې دغه حالت له بل هر وخت نه ډیر ځورونکی او د اندیښنې وړ دی.

که بهرني یرغلګر دلته نه وای، جنګ به نه و، بمبار به نه، سرتیري بریدونه به نه وو، د جګړو له امله به د میلیونو افغانانو زیانمنېدل، وژل او ټپي کیدل به نه وو، څوک به د کورونو پرېښودلو ته نه اړ کېدل، نه به هم په خپل منځ کې افغانان له دومره بد بختۍ سره مخ وای؛ نو همدا لامل دی چې افغانستان او افغانان د امریکایي یرغل قرباني شول او لاهم قرباني کیږي.

افغانان د نړۍ پر مخ تر ټولو مظلوم او د زړه خوږي وړ ملت دی، نړۍ دې په ځای چې د دغه جنګ او غربت ځپلي مظلوم هیواد له خلکو سره خواخوږي ولري، ارام ژوند ته یې پرېږدي، نور هم افغانستان او افغانان د خپلو ناروا سیاستونو ښکار کوي او د افغانستان په خاوره د بل شوي اور څخه خپلې سیاسي او اقتصادي ګټې لاسته راوړي.

دا چې اوس ځیني افغانان په دغه د اشغال حالت کې د ازادۍ د لمانځلو له پاره خوښي کوي؛ په دوی کې یې ډیر په دې پوهیږي چې ازادي نه لري او هیواد یې اشغال دی مګر بیا هم د هیواد د ازادۍ مینه په یوه نه یوه ډول څرګندوي؛ خو زما په نظر په داسې ورځو کې باید ددې په ځای چې هسې بې معنا ازادي ولمانځو؛ په دې فکر او کار کول په کار دي چې ځنګه ګران هیواد له روان اشغال څخه وباسو او ځنګه ازادي ترلاسه کړو، مونږ ته په کار دي چې له هیواد څخه د یرغلګرو ځواکونو د وتلو له پاره کار وکړو او ټول افغانان د یوې تلپاتې سولې د راتلو له پاره په یوه ټغر سره راټول کړو او هر کله چې دې هدف ته ورسېدو چې یرغلګر له هیواده وشړل شي او په خپل منځ کې د سولې، یووالي او خپلواکۍ ژوند ولرو نو هغه مهال به مو په رښتینې توګه ازادي درلودلې وي او همغه وخت به یو بل ته په خوښۍ د هیواد د ازادۍ او خپلواکۍ د ورځې مبارکي وایو، الله دې دغه ورځ ډیر زر په افغانانو ووینې.

په هیواد کې د خپلواکۍ او تلپاتې سولې او دټولو افغانانو د ګډ او سوله ییز ژوند د راتلو په هیله

# د پوچ کارتوس د معما حل؛

## ۳۰ کاله د راز په پردو کې پټ حقیقت

شهرت ننګيال

۱۳۶۲لمريز کال په مهاجرت کې د ادبي زلزلو کال و. په دغه کال کې مرحوم مولوي خالص داسې ادبي زلزله ګډه کړه چې هيچا يې اټکل او وړاندوينه نه‌شواى کولاى.

دا چې د يو تنظيم رهبر دې راولاړ شي او د شعر په ژبه دې له مسلط چاپېرياله د بغاوت هنګامه توده کړي.

له ځانه بغاوت، پر ځان نيوکه، پر تنظيمي حاکميت، مشرتابه او اړيکو انتقاد...

ده دغه بغاوت له ځانه پيل کړ، په خپل سر يې د بغاوت اور بل کړ او پر خپل ځيګر يې د دغه بغاوت جنډه لکه کړه، ځکه خو يې چې څومره ولړزول، تر دې زيات يې وپارول.

ده د خبرو يو داسې قلمرو فتحه کړ چې سملاسي يې په‌کې د قلم د امپراتوري بيرغ پورته کړ.

ده د شورويانو تر ماتې له‌مخه، د کابل تر لاندې کولو وړاندې، په خپل قلم د خبرو ملکونه فتحه کړل. د دغو ملکونو پولې بريدونه نه وو، کوم سيال او مدعي يې سر نه‌شواى پورته کولاى.

دغې فتحې ډېر غټ زړه غوښت، دغسې زړه د بل جهادي مشر نه و.

په داسې يوه تړولنه او حاکميت کې چې انتقاد جرم او کفر ګڼل کېده، خالص دغه تور په خپله غاړه واخيست. ده دغه ګناه سپېڅلې ثابته کړه، ثواب يې وګرځاوه.

د تورو جنګ به ما کولاى

د سترګو جنګ دى، وارخطا ولاړه يمه

هيچا دغسې جنګ ته زړه نه‌شواى نيولاى، خو خالص په دغه جنګ کې هم فتحه په خپل نامه کړه. ده د «وهي په بډه» تر سرليک لاندې يو شعر وکيښ.

دغه شعر جهادي او تنظيمي رهبران چې ځانونه يې معصوم او سپېڅلي ګڼل، وننګول. په دې توګه مولوي خالص د تنظيم له مشرتابه په راکوزېدو ځان له عامو افغانانو، ليکوالو او شاعرانو سره مل او همغږى کړ.

دغې همغږي خالص ته د ابديت مخه ورکړه، خالص په حق ورسېده، خو ادب د ده ژوند ابدي کړ.

دغه ابديت ده په توپک نه، په خپل قلم د خپل تقدير پر تخته وکيښ، د قبر شناخته او ډبرليک يې وګرځېده.

د خالص «وهي په بډه» شعر په داسې وخت کې ادبي زلزله ګډه کړه چې يو جهادي مشر تر اوښانو غټ څېزونه، بلکې ټول اتحاد په بډه وهلى و.

په دغه شعر کې سرې لړ و ډېر د دې پته لګولاى شواى چې خالص کوم رهبر ته، له کومه اړخه ګوته نيولې، ځکه خو يې پر تعبير د ډېرو لاس بر و.

يو بل ته سره غله دي، خو دعوه کړي د يووالي

په نـــــوم د اتحــــاد واره
سامان وهي په بېړه
ځان ساته «نبي‌خېله» چې تـا
هم په بېړه نه کړي
رهــبر چـــې شي بـــې‌لارې
رهبران وهي په بېړه

د خالص دويمه ادبي زلزله د «کوڅه‌ډب رهبر» شعر و، پـه دغـه شعر کې هم تنظيمي چاپېريـال او جهادي مشـران د رټنـې تـر بريـده کړل شوي وو.

د «کوڅه‌ډب رهبر» اصـطلاح په لومړي ځل مولـوي خـالص پـه خپلو ادبياتو کې راپورته کړه.

پــه دغــه شــعر کــې هــم لوســتونکي د دې درک لگــولای شوای چې په کوم بيت کې کوم مشر ته له کوم پلوه نغوتـه شـوې ده؟

خالصه! خير دې غـواړه چـې
شپې ورځې دې ترخېږي
چـــې غلــه شي مجاهــد او
رهبران شي کوڅه‌ډب

دغــــو دوارو شـــعرونو د کېوالو خولو ته په لوېدو دومره منبنت وموند چې لـه ليکنـو پرتـه پـه بنـدارونو کـې هـم يـو ماخـذ وگرځېدل، ځکه خو ډېر ژر په ورځني ژوند او اړيکو کې دود او موډ شول.

«وهي په بېړه» لومړى ما د پاڅون په نامه او مرحوم استاد پسرلي او استاد رفيـع د جيحون او سمون په نامه بدرگه کړ. په مجاهد ولس کې دا لړۍ دومره وغځېده چې ولسمل صاحب دغه شعرونه په ځانگړې رساله کې خپاره کړل.

د مرحوم درېيمې زلزلې داسې ادبي ټکانونه رامنځ ته کړل چې کلونه يې خلـک په ازمايښت کې غورځولي وو. د چا خبره له داسې شش و پنج سره يـې مخـامخ کـړل چې په اټکلونو، قياسونو او پوښتنو يې هم اصلي درک نه‌شواى لگېداى.

تر اوسه هم د دغـې زلزلـې افټرشـاکس ټکانونـه دوام لـري. دغـه شـعر د پـوچ کارتوس تر سرليک لاندې و.

خالص له هيـــچا نه گيـــله نه لري
پـوچ يې له خپل جبه کارتوس وختو

گڼو خپرونو دغه شعر چاپ کړ، چا ويل قوماندان عبدالحق يـې ښـوولى، چـا پـر مولوي حقاني گوته کېښوده، چا به څوک ياداوه، چا څوک...؟

هيچا هم د ننبې منځ نه‌شواى ويشتلاى.

په ۱۳۷۹لمري کال چې حفيظ الله غښتلي د جلال‌اباد په پنډغالي کې له مولـوي خالص سره د گوربت له‌پاره مرکه کوله، ما ورته د دغې پوښـتنې يادښـت ورکـړى و، خو مرحوم يوازې دغې څرگندتيا ته نوک نيولى و چې نه يې حاجي عبدالحق ښوولى، نه مولوي حقاني...

په دې توگه يې له گوربت سره په هغه مرکه کې هم خپله ننبه پټه ساتلې وه.

ان خپل نږدې ملگرى عبدالکبير خان طلايي ته يې هم لـه دغـه رازه پـرده نـه وه پورته کړې، ځکه خو ښاغلي طلايي په خپل کتاب کې د دغـې معما پـر حـل بريـالى شوى نه دى.

زه، ولسمل صاحب او ښاغلى عبدالباري غيرت په پېښور کې د مولـوي خـالص پوښتنې ته د ابدره روډ حوېلۍ ته چې د سياسي حوېلۍ پـه نامـه يادېـده، ور برابـر شوو، مرحوم يې د درملنې له‌پاره راوړى و، غالباً له پروټسټاټه کړېده، له فزيکي پلوه کمزورى، خو حافظه او يادښت يې پر ځاى وو.

موږ چې ورغلو په کټ کې يې ښې لاس تر مخ لاندې ايښې و چې د روغبړ لپاره يې موږ ته را اوږد کړ.

ويل زړه خو مې د غېبړې روغبړ ته دی، خو څه وکړم؟

موږ لږ لېرې پر توشکو «ناليو» کښېناستو، د ده خبرې مو نهشوای اورېدای. بيا يې موږ ته پلاستيکي چوکۍ راوړې، د ده کټ ته نږدې کښېناستو.

ما چې موقع مناسب وليده، د پوچ کارتوس خبره مې راواخيسته.

ويل هغه دې حاجي صاحب تېرايست، ما نهشې دوکه کولای، ولسمل او غيرت له يوې بلې لارې پرې راوگرځېدل، بس را گير مو کړ.

ويل الفت صاحب زموږ ټولو استاد دی، دی وايي خبره په پرده کې ښه ده چې ليکنه، مقاله، وينا، خطابه ټول د تانيث نښې لري، ځکه خو يې سرې بايد بېپردې نه کړي.

خو درې زورور راته ناست دي، دا يو «غيرت» مې د استاد زوی، صاحب حق دی، دا بل «ولسمل» مې پخوانی ملگری او د استاد زوم دی او دا ننگيال زما د اشنا نازولی دی، پر ما هم گران دی. نه غواړې چې راز، راز پاتې شي، له لنډې موسکا سره يوه شېبه غلی و. بيا يې يو ټکی له خولې ووت چې له ما سره امانت دی، له يو څه چوپتيا سره؛

سياف! «په لږ ځنډ» هو، سياف! ورسره يې سر درې ځله وښوراوه.

تر يو څه اوږد سکوت وروسته يې ويل؛ سياف له زندانه په خلاصېدو په پېښور کې ماته راغی، پر ما له دې اړخه هم ښه لگېده چې له زندانه زما د زوی مولوي محمد نسيم بوی ورسره دی، په سوځنده ترنم يې دا شعر ولوست؛

ز مصرش بوی پيراهن شميدی
چرا در چاه کنعانش نه ديدی

سياف له ما سره د ملگرتيا ژمنه وکړه، ما ده ته د خپل تنظيم او دفتر کيلۍ ورکړې، بانکي شمېرې هر څه مې ورته کېښودل، د اتحاد رياست ته مې کانديد کړ، خو ده بله وکړه...

په لږ ځنډ يې زياته کړه؛ دريغه سياف د خپلې پوهې، علميت او ذکاوت پاس ساتلی وای...

## پوچ کارتوس

ما وې چې باز دی خو ټپوس وختو — په دووسانو کې دووس وختو
د زړه په وينو مې روزنه ورکړه — چې زړه ترې جوړکړم، خوپپوس وختو
ډېر مې ټولنه کې درونـد وتللو — اخېر کې سپک انډی د بوس وختو
په جهادي هدف يې لوبې وکړې — خدايږو له روس څخه چړوس وختو
د امريکا په ډالر ونڅېده — د خدای له مرستې نه مايوس وختو
موږ وې د ده له بخته مخکې به ځو — خو دی پهخپله کې منحوس وختو
خالص له بل چا نه گيله نه کوي — پوچ يې له خپل جېبه کارتوس وختو

عبدالرحمن

# زمونږ د شاتګ او د لويديځ د پرمختګ راز په څه کې دی؟

کله چې په غرب کې يو کتاب بازار ته وړاندې شي، په يوه ورځ يې په مليونونو نسخې خرڅې شي، دې ته وايي د کتاب سره مينه او دې ته وايي د پرمختګ راز. کله چې په غرب کې د کتاب لوست کم شي، هغوی بیړنۍ حالت اعلانوي، د کتاب لوستلو رنګا رنګ مسابقې اعلانوي، راډيو، تلويزون، مکتبونه او ورځپاڼې ټول د کتاب پر اهميت غږيږي، د کتابونو ليکوالانو سره مرکې کوي، هغوی ته اهميت ورکوي، د هغوی کار ستايي ، د هغوی د کتابونو پر منځپانګه پوښتنې مطرح کوي او خپل ولس دې ته اړبا سي چې د کتاب په وړاندې تجسس را وپاروي او خلک يې لوستلو ته اړايستل سي.

ددې تر مخه د کتابونو د لوستلو په اړه د شرقي او غربي نړۍ تر منځ ډيرې پرتلې شوي، همداسې بيا په شرق کې د جاپان، چين غونډې پرمختلليو هيوادونو د ولسونو او عربي نړۍ غونډې هوسا ژوند لرونکو او استهلاکي فکر لرونکو تر منځ پرتلې شوي چې د ځمکې او اسمان تر منځ غونډې فاصله سره لري او همدا پرتله که چيرې زمونږ د سيمې هيوادونو ته راسي، لکه افغانستان، ايران او پاکستان، نو بيا خو شايد پرتله د ځمکې او اسمان دوچنده برابرۍ ته ورسيږي.

مونږ چې کتابونه چاپ کړو، خلک خبريږي هم نه چې څه مو چاپ کړي، چيرته مو چاپ کړی، اکثره ليکوالان د خپل جيب په خرڅ باندې کتاب چاپوي او بيا يې د يوې مکتبې څخه تر بلې په شا ګرځوي که يې څوک په خپله مکتبه کې د خرڅلاو لپاره کښيږدي، خو اکثره نسخې يې داسې کسانو ته په تحفو او د ليکوالانو د ډاليو په متن ولاړې سي چې کله يې هم بيا د را پورته کولو تکليف نه کوي، چې له امله يې ليکوال نهيلی او د بيا کتاب ليکلو او چاپولو له ډاره ځان يو خواته کوښه کړي.

زه خپله چې په يو عربي هيواد کې اوسم، دلته هر کال د کتابونو د خرڅلاو ميله لګيږي، چې د حکومت له خوا په ډير اهتمام او د وزيرانو تر کچې خلکو په وجود کې پرانيستل کيږي ، ډير کله ميلمانه ولسمشران هم ورته را بلل کيږي، خو کتابونه به هغه ښه په کښې خرڅيږي، چې يا غزل وي، يا د عربو په ځايي لهجو په ګډوډ تورو بيخونده شاعري وي، د تليفون او واټس اپ مسيجونه به وي، د ټويټر او فيسبوک لپاره به کوچني کوچني پوستونه وي، او يا به هم د اشپزخانې د پخلي تجربې او طريقې وي.

دا خبري مې تر دې را يادې سولې چې همدا اوس په غرب کې د يوې خيالي کيسې (ناول) يو کتاب چاپ شوی، چې د هاري پوټر په نامه ناول د لړۍ اتم نمبر کتاب دی، ليکواله يې وايي چې دا به يې وروستی کتاب وي.

ددغه ناول کیسه پر یوه هلک باندي را ګرځي څوک چې د سحر او جادو په نړۍ کې ژوند کوی، هلته خپل ځان ورته مالومیږي چې دده جادو زده دی..

د وروستي کتاب سرلیک دی: هاري پوټر او جادوی شوی هلک یا مسحور هلک.

د وروستیو راپورونو سره سم په لومړیو دوه درې ورځو کې یوازې په امریکا کې ددغه کتاب تر دوه ملیونه زیاتي نسخې خرڅې شوې، په برتانیا کې تر ٦٨٠ زره نسخې او همداسې په نورو هیوادونو کې ټولي هغه مکتبې چې ددغه کتاب د خرڅ جواز یې له مخکې لرلو، وایې چې دوی خپلې ټولې نسخې ایستلې، څوک چې د کتاب غوښتنه کوي هغوي دي انتظار وکړي تر څو بل ځلي چاپ او مکتبو ته را ورسیږي. که څه هم دا یو ناول دی او ټوله کیسه یې خیالي ده، خو ددې څخه مالومیږي چې د لیپ ټاپ، موبایل او ټابلیټ جوړونکي د ورقي کتاب سره څومره مینه لري او مونږ څرنګه ورقي کتاب خوشي کړی او سترګې مو په سکرین باندي خښې کړي دي، تر دې پوري چې اوس ډیری خلک مو قرآن کریم تلاوت هم پر هغه سکرینونو باندي کوي چې وروسته یا مخکې باندي دښځو نڅا ویني او یا خپل بل مسلمان ورور ته باندي ښکنځلي کوی یا ورته بد رد لیکي، که داسي نه کوي نو غیبت خو به خاماخا باندي کوي.

# دلیوال صاحب کیسه

**قاري سعید**

عبدالغفور لیوال صیب د امریکایي یرغل په لومړیو کلونو کې د ازادۍ راډیو خبریال و، د اسد ۲۸مه راغله او د کابل په غازي لوبغالي کې د ازادۍ جشن جوړ شو، لیوال صیب ته دفتر وظیفه ورکړه، چې غازي لوبغالي ته لاړ شي او د جشن راپور ترتیب کړي،لیوال روان شو، خو لوبغالي ته نارسیده، د آیساف برتانوي عسکرو دریش کړ.

ــ څوک یې او چیرې روان یې؟

ــ خبریال یم، غازي لوبغالي ته ځم...

ــ په غازي لوبغالي کې څه کوې ؟

ــ هلته جشن دی، ورځم چې راپور ترې جوړ کړم

ــ د څه شي جشن دی؟

ــ د آزادۍ جشن

ــ له چانه د ازادۍ جشن؟

ــ امممم ... امممم

ــ ولې غلی شوې خو ځواب راکړه!

ــ نه شم ویلی، ډیره سخته ده، شرمیږم!

ــ زر ووایه او کنه نو...

ــ هسې ما ویل له تاسو ( انګریزانو) نه د آزادۍ جشن...

ــ ښه هههههههه، جشنونه یې لمانځئ خو د ازادۍ فکر مو د بیا لپاره له مغزو وغورځوئ!!

یادونه

د تلپاتې ازادۍ دعملیاتو عسکرو، د ازادۍ په ورځ، د ازادۍ راډیو خبریال ته د بیان د ازادۍ په رڼــا کې د آزادۍ په اړه کــټ مــټ همداسې خبرې کړې وې کنه له لیوال صاحب نه پوښتنه وکړئ.

داسلامي نړۍ ثقه عالم مولانا سید ابو الحسن علي ندوي ژ: ابوظهیر لومړۍ برخه

# دلویدیځ د نړیوالي لاملونه

## دجدیدیت ځپلو اسباب اودرملنه یې:

تردي ځایه په اسلامي نړۍ کې داتاترک په قیادت (۱۹۲۴–۱۹۳۸ز) کې دجدیدیت او غرب ځپلي خوځښت اجمالي تاریخ له پیله په لنډ ډول راوړل شو، درنو لوستونکو ولوستل چې په نویو ازاد و اسلامي هېوادو کې دجوړوشویو نویو اسلامي حکومتونو زیات رهبران د اتاترک له ایډیا سره متفق او د هغه نه متاثر بریښېدل اودهر هېواد ذهینو ،لوستو او دځواک خاوندانو میلان دکمالي طرز اصلاحاتو، پرمختیاوو او دمغربي جدیدیت په لوردی، مونږ ته په دې باندې غور پکار دی چې ایا دا محض اتفاق دی یا د کمال اتاترک دځواکمن شخصیت نتیجه ده؟ او که ددې په تل کې نور کره ، قوي ،مؤثر او نړیوال لاملونه مندل کېږي چې په اسلامي نړۍ کې د ملک ، ټولنې، بیا رغونې او جوړښت په نامه هرګام اخستل کیږي هغه دکمال اتاترک په قدم پورته کېږي او دهېواد دترقۍ استحکام راز دجدیدت او مغربیت په ړانده تقلید کې ګڼي؟

زمونږ په اند دا یو شمیر ژور، کره او عمومي لاملونه لري، چې په اړه یې مونږ دلته په لنډه توګه جلا، جلا دهغه لاملونو (factors) څېړنه او ارزیابي کوو :

غربي نظام تعلیم:

دنظر خاوندان پوهیږي چې د بشري وجود په څېر تعلیمي نظام هم خپل جلا روح اوضمیر لري ، دغه روح او ضمیر په اصل کې دهغو جوړونکو او ترتیبوونکو دعقایدو او دهغوی دژوند په اړه دهغوی د لرلیدونو ،د کائناتو د مطالعې او دهغوی د اخلاقیاتو انځور وي؛ کوم چې تعلیمي نظام ته دخپلواکۍ په بڼه یو خپلواک روح او ضمیر وربښي، دا روح دنظام په ټول قالب کې ،په ادبیاتو ، فلسفه، تاریخ، هنرمندۍ، عمرانیاتو آن په اقتصاد اوسیاست کې هم سرایت کوي چې دیوچا لپاره ترې مصؤن پاتې کیدل ستونزمن کاروي، دا دیو لوی اجتهاد ي صلاحیت او ستر ناقدانه کمال دی، چې د هغه ګټور اجزاء له مضرو څخه را جلا کړي او د [خُذ ماصفا وَدَع ما کَدر] اصل باندې په عمل سره داصل او زوایدو په توپیر سره جوهر او روح را واخلي،هو! په تجربوي او طبعي علومو کې دا کار ډېر ستونزمن ندی البته په ادب او فلسفه او عمراني علومو کې له زیاتو ستونزو ډک نازک کار دی، په ځانګړې توګه یو داسې ولس چې هغه دمتعینو او محکمو عقایدو، مستقلې فلسفې او د ژواند انه مسلک، خپل جلا تاریخ (کوم چې دراتلونکو نسلونو لپاره دلارې دنشان په بڼه دی) لري، دکوم لپاره چې دی د پیغمبر او دلاربنود حیثیت لري ، کله چې په یو داسې قوم داسې تعلیمي نظام اومنل شي ، چې په اساس ،بنیاد او معیار کې دهغه نه جلا وي، بلکې دهغه ضد واقع وي نو په نتیجه کې به یې ګام په ګام تصادم رامنځته کېږي چې دیوه تعمیر دبل تخریب دیوه تصدیق او د بل نفي دیوه احترام او دبل تحقیر پرته ممکنه نده

چې په دغسي حالت کې ذهني کشمکش، په عقایدو کې تزلزل، له خپل دین څخه انحراف، د پخوانیو افکارو او اقدارو په ځای دنویو افکارو او اقدارو منل خامخا کیدونکې دي دا یو قدرتي عمل دی او بلکل هغسي وړاندې درومي څنگه چې د قدرتي کارونو کیدل حتمي دي، هیڅ ډول خوش فهمي، دضمیرگډوډي او دمشرانو بهرني جزئي انتظامات یې دوقوع په وړاندې خنډ نشي کیدای، داسمه ده رفتاریې سست کیدای شي او وقوع یې وروسته کیدای شي خو یو مخ معطل نشي کیدای، کله چې یوه ونه خپل طبعي نشوونما مومي نو هغه به خامخا پاڼې او ښانگې پیدا کوي او پخپل وخت به میوه نیسي انسانان ددې اختیار لري چې ونه نهال نکړي یا ورته اوبه ورنکړي یا کله چې هغه زرغونه شي، هستې یې له منځه یوسي خو ددې وس نلري چې ښه تازه، توانا او مسته ونه دخپل نوعي وجود او شخصیت څرگندولو پرمهال دمیوه نیولو څخه مهار کړي.

دیته ورته معامله دغرب تعلیمي نظام ده، هغه یو جلا روح او خپل منفرد ضمیر لري کوم چې دهغه دمصنفینو او جوړونکو دعقیدې او ذهنیت عکاس دزرگونه کلو دطبعي ارتقاء (ودې) نتیجه دلویدیځ دمنل شویو افکارو او اقدارو ټولگه او تعبیر دی! دغه تعلیمي نظام چې کله په کوم اسلامي هېواد یا مسلمانه ټولنه کې پلي کړای شي نو په نتیجه کې به یې ذهني کشمکش اعتقادي تزلزل او بیا ذهني (الاماشاء الله) دیني ارتداد زیږي یو داسې غربي مفکر (محمد اسد [پخوانی LEOPOL WEISS] چې دسلیم طبعیت خاوند دی او هم دختیځ او لویدیځ دتعلیمي نظامونو دپایلو په اړه اوږده تجربه لري سهي لیکلي:

مونږ په وړاندې مخونو کې ددې خبرې په تائید څو لاملونه او دلایل وړاندې کړل چې اسلام او غربي تمدن چې دژوند په دوه متضادو نظریو ولاړدي، له یو بل سره کډیدای نشي، هرکله چې داسې ده نو مونږ بیا څنگه دا توقع لرو چې دمسلمانانو نوي نسل ته دغربیانو پښان ښوونه روزنه او ورکول (کومه چې په ټوله کې دلویدیځ دعلمي او کلتوري تجربو او دهغوی دغوښتنو زیږنده ده) چې داسلام له اغیزاو اثر څخه پاکه وي!!

مونږ ددې تمې لرلو لپاره هیڅ جواز هم نلرو، که مونږ ځیني غیرمعمولي حالات استثناء هم کړو چې په هغو کې دکومې لوړې درجې رڼو مغزو لپاره داسې ممکنه ده چې هغه دې دخپلو درسي مضامینو څخه تاثر وانخلي نو بیا هم عامه اصول دا پاتې وي چې نویو نسلونو ته غربي ښوونه او روزنه ورکول هغوی ددې وړنه گرځوي چې هغوی ځانونه دخپل هغه ځانگړي تمدن استازي او گڼي کوم چې هغوی ته اسلام راوړی، په دې کې دزرې اومره شک نشته چې د هغو روڼ اندو دیني عقاید دي نه وي مضمحل شوي چاچې دغربیانو په څېر پوهه حاصله کړې. (islam at the crossrods.۸۳.۸۴)

بیا نو موږي دتعلیم دبېلابیلو اجزاوو په اړه جلا ،جلا نظریات وړاندې کړي او لیکي:

دغربي ادبیاتو تدریس چې اوس مهال په کوم شکل په ډېرو اسلامي هېوادو کې جریان لري دا به ددې پرته چې داسلام او مسلمانو ځوانانو په نظرونو کې دې یو اجنبي څېزکینوي بله فایده ونلري، دا خبره ډېره داروپايي فلسفې د تاریخ په اړه دپام وړه ده ځکه داروپايي تاریخ پخوانی نظریه داده چې: په نړۍ کې یوائې دوه ډلې وې رومي (ROMANS) او وحشي (BARBARIANS) په دې ډول دتاریخ وړاندې کولو څخه یو پټ غرض دی چې څو ثابته کړې چې غربي ولسونه او دهغوی تمدن له هرچا نه ډېر پرمختللی دی! کوم چې تردې مهاله په نړۍ کې شتون لري او په راتلونکې کې هم شتون به ولري، څو په دې پلمه لویدیځ ځانته په نړۍ کې

دمادي واک او ځواک ترلاسه کولو اخلاقي جواز پیدا کړي او په دې اراده کې ځان حق په جانب ثابت کړي.

وړاندې لیکي:

د تاریخ دغه ډول تدریس د ځوانانو په مغزو کې د دېنه علاوه بل اثر نه پرېږدي چې هغوی د کمترۍ په احساس کې مبتلی کړي او خپل ټول تاریخي دور او کلتور ته د حقارت په نظر وګوري او په راتلونکي کې دهغه د ترقۍ او اوپراختیا د ټولو امکاناتو څخه انکار وکړي او په دې ډول هغوی یو داسې منظم تربیت واخلي چې پکې ورته خپله ماضي او خپل راتلونکی دواړه حقیر وبرېښي! دهغوی په اند د دوی راتلونکی بری یوازې په دې کې دی چې هغوی د غربي معیار سره برابر او له غربي افکارو سره هم آهنګ وي ( P.۹۷)

نوموړي وړاندې درومي او په خورا جرئت سره لیکي:

که مسلمانانو په ماضي کې د علمي، څېړنیزو او فکري خدمتونو د پامه وغورځولو تیروتنه وکړه نو په دې کې هیڅ شبه نشته چې دهغې تیروتنې د اصلاح طریقه دانده چې د غرب تعلیمي نظام دې چې څنګه دی هغسې دې قبول کړي، زمونږ ټوله تعلیمي پسمانده ګې او علمي کمزوري ددې مهلک اثر په وړاندې کوم حیثیت نلري کوم چې د غرب د تعلیمي نظام ړانده تقلید د اسلام په مخفي ځواکونو غورځولي، که مونږ د اسلام جوهر یوازې دا بولو چې وړباندې پوښو او خوندي یې کړو چې هغه یو مستقل کلتوري عنصر دی نو مونږ لپاره به اړینه وي چې د غربي تمدن د ذهني ماحول او فضا نه لیرې اووسو هغه فضا کومه چې زمونږ په ټولنه او زمونږ په خواهشاتو د غلبې مندلو لپاره تیاره ده، دلویدیځ د کړو وړو او طریقو پخپلولو د هغوی د لباس او دژواندانه د مظاهرو په قبلولو سره کرار کرار مسلمانان د لویدیځ د فکر په قبلولو به مجبور شي د بهرنیو مظاهرو تقلید به یې د هغه ذهني تقلید ته ورسوي( ۹ .pp) ددې نتیجې وړا ندوینه ځینو هغو مفکرانو هم وړاندې کړې څو ک چې په اسیا او شرقي هېوادو کې غربي تعلیمي نظام ته ترویج ورکونکي ګڼل کېږي مشهور انګریز لیکوال لارډ میکالي څوک چې په ۱۸۳۵ز کې د دغه تعلیمي کمیټې مشرو، هغه ددې پروسې بشپړولو لپاره کینول شوی و چې هندوستانیانو ته دختیځو ژبو په ځای په انګریزي ژبه لیک لوست او زده کړې وروښیي، پخپل راپور کې هغه لیکي:

مونږ ته یوه داسې ډله جوړول پکار دي چې هغه زمونږ او زمونږ د څو ملیارد رعایاوو ترمنځ ترجمانه اووسي داسې ډله روزل پکار ده چې درنګ او او وینې له پلوه هندوستانیان وي خو د مزاج، ذوق، رایې، الفاظو او پوهې له پلوه انګریزان وي( تاریخ التعلیم د میجر باسو ۸۷مخ)

دا غربي تعلیمي نظام په حقیقت کې ختیځ او شرقي هېوادونو کې یوه ژور قسم لیکن خاموشه نسل وژنه( Genocide) وه غربي پوهانو له جسماني پلوه دپوره نسل وژلو او هلاکولو دپرسوده زړې طریقې په پرېښودو پخپلو قالبونو کې دهغو دځایولو پریکړه وکړه او ددې کار لپاره یې ځای په ځای مرکزونه جوړکړل چې هغه دپوهنتونو او لیسو په نومونو ونومول شول او ابناد اکبر الآبادي دغه څرګند تاریخي حقیقت پخپل ځانګړې ظریفانه شاعرانه سبک او لهجه کې ښه انځور کړی دی دنوموړي مشهور شعر دی:

یون قتل سی بچون کی وه بدنام نه هوتا
افسوس کي فرعون کو کالج کې نه سوجي

په یوبل شعر کې وایي:

مشرقي توسرِ دشمن کو کُچل دیتي هی
مغربی اس کې طبعیت کو بدل دیتي هی

دهغه نه څو کاله وروسته اقبال (چاچې ددې تعلیمي نظام زخم پخپله خوړلی) دغه حقیقت نور هم په ښه په زړه پوري ښه وړاندي کړ:

مباش ایمن ازان علمی که خوانی

که ازوی روح قومی می توان کُشت (ارمغان حجاز ۱۴۴مخ)

تعلیم دقالب ماهیت لري څنګه چې یو قالب مات شي په ځای بل قالب جوړ شي وایي:

تعلیم که تیزاب مین ڈالاس کي خودی کو

هو جائے ملائم تو جدهر چاهی اسی پهر

تاثیر مین اکسیر سی بڑه کرهی یه تیزاب

سونی کا همالہ هو تو متی کا هي اک ڈهر

(ضرب کلیم)

نوموړی دغرب تعلیمي نظام ددین او اخلاقو په ضد یو سازش بولي وایي:

اوریه اهلِ کلیسا کانظام تعلیم

ایک سازش هی فقط دین و مروت کي خلاف

اقبال له هغو څو ګوته په شمار بختورو شخصیتونو څخه دی چاچې دغربی نظام تعلیم په سمندر کې غوپه وهلې او بیا تري راپورته شوی او نه یوائې داچې سهي سالم ساحل ته رسیدلی، بلکې له ځان سره یې ګڼې ملغرې د سمندر د تل نه را ویستلې، دهغه په ځان باور او داسلام په ابدیت او دهغه په پراخو مضمراتو کلک ایمان و، اګرکه دا ویل به مشکل وي چې نوموړي دغربي تعلیم او غربي فلسفې اثر ندی قبول کړی! دنوموړي دیني فهم دکتاب او سنت سره پوره برابردی، خو په دې کې شک نشته چې دنمرود اتش لمبود زرګونه ځوانانو پشان داقبال خپلواک شخصیت ندی سیزلی او تر ډېره ځایه هغه ته ددې ویلو حق حاصل دی چې وایي:

طلسم علمِ حاضر راشکستم

ربودم دانه و دامش گسستم.

خدا داند که مانند براهیم

بنارِ او چه بي پروا نشستم (ارمغان حجاز ۷۰مخ)

ددې نوي تعلیم او دهغه اغیزو په اړه دمولانا محمد علي جوهر شهادت هم ډېر ارزښتمن دی چاچې په یو راسخ العقیده دیني چاپیریال کې روزنه مندلې او بیا دهندوستان په لوړو غربي تعلیمي مرکزونو کې زده کړې پیل او سرته رسولې هغه پخپل لاس لیکلو سوانحو کې لیکلي:

برتانوي دولت دبشپړې مذهبي بیطرفی قایل او علمبردار و، مذهبي تعلیم څه چې اخلاقي تعلیمات یې یومخ وویستل ،دې پالسې ته یې دومره عملي ښه ورکړه ،چې هغه معلومات چې هلکانو به پخپله له انګریزې او یا ختیځو ژبوله درسي کتابو اخذ کول ممنوع وګرځول

بل پلو هغه تعلیمي نظریه کومه چې حکومت دهندوستان ځوانانو ته راوړې وه "جدیدیت"وخو دخپلو تخریبي صلاحیتونو ترڅنګ ټول زوریې په دې و چې دشاګرد دننه د یو بې ځایه همه دانۍ احساس پیدا کړي او دپیړیو پخوانو توهماتو ترڅنګ دروایت، سند او حجت ټول عظمتونه ونړوي په دې کې شک دی چې دزماني رفتار سره یو ځای دغه تعلیم دحقیقت په تلاش او جستجو کې د مخلصانه جذباتو درا ویښولو لامل وګرځید دپخوانیو توهماتو په بدله کې چې کوم څه ورکول هغه پخپله په بي بنسټه توهماتو بناوو هو! ضرور لږ نوي وو (my life fragment.p.۲۳.۲۴)

نوربیا....

# چنګیزخان څوک و؟

وسیم

چنګیز خان په تاریخ کی یو وحشی او بی رحمه او خونړی مغولی سوبمن (فاتح) سردار او واکمن تیر شوی دی، تاریخونو د ده اصلی نوم تموچین راوړی دی، ویل کیږي چې نوموړی د اوسني مغلستان (منګولیا)د هیواد د ګوبی د صحرا (دښتې ) په هنتی نومي سیمه کې په (۱۱۶۰ زیږدیز) کال زیږیدلی، پلار یې (یسوګی )او نیکه یې (کبلی خان) نومیدل، په دیارلس کلنۍ کې یې پلار د تاتاریانو له خوا ووژل شو او د ده د قبیلې مشرانو دی د ده ورونه خویندې او مور دښتو او صحراو ته تبعید کړل، ده وروسته د یوې قبیلې له سردار جاموخان سره دوستانه اړیکې ونیولې خو وروسته بیا د خپل پلار له یوه ملګري اونګ خان سره چې هغه هم د یوې قبیلې سردار ا مشر- و ،د ده د دوستۍ مزي او اړیکې ټینګې شوې، هغه د چنګیزخان هر کلی وکړ خو بیا وروسته د دغې قبیلې د سردار اونګ خان او دد ه ترمنځ اختلافونه رامنځ ته شول او اونګ خان او زوی یې سرنګون او و وژل شول.

په ۱۲۰۶ ز کال دده د قوم مشر-انو تموچین د سترخان او مشر- په توګه وټاکه او ستر روحاني (کوکوچو) ده ته د چنګیز خان لقب ورکړ چې سخت او پیاوړي ته ویل کیږي، چنګیز خان نهه دیرش کلن و چې د پاچاهي پرتخت کښیناست او لومړنی کار یې چې وکړ د نورو قبایلو ځواک او قدرت یې محدود کړ، ده یو پیاوړی پوځي جوړښت رامنځ ته کړ، ده خپل پوځ له لس زریزه پوځي ډلو نه جوړ کړ چې تومان به ورته ویل کیدل او بیا یی هر تومان په زرو پوځی ډلو وویشل چې هزاره به یی ورته ویل، ده یو داسی پیاوړی او منظم پوځ جوړ کړ چې ساری یې نه درلوده، چنګیز خان په ۱۲۱۸ ز کال خپل یرغلونه پیل کړل او د نړۍ د نیولو په فکر کې شو، ده پرچین روسیې افغانستان ایران او منځنی ختیځ بریدونه وکړل ، دی به چې هر ښار ته تلو نو د خلکو کورونه عبادت ځایونه مدرسې جوماتونه او کتابتونونه به یې ورانول او سوځول او پر انسانانو څه چې پر حیواناتو او سپیو او پیشوګانو یې هم رحم نه کاوه، د چنګیز په خونړیو بریدونو کې دمنځنۍ اسیا د سمرقند بخارا او مروې ښارونه چې د اسلامي ثقافت او کلتور یوه ښکلګه وه د خاورو سره برابر او د دغو ځایو سم نیمایي خلک پکښې ووژل شول، ده د افغانستان د بلخ ښار چې ام البلاد (دښارونو مور) یې ورته ویل او هرات ښار تباه کړل، ده د ایران په نیشاپور او نورو ښارونو کې هم خونړی کارونه تر سره کړل او په بغداد کې عباسی خلافت د ده د لمسی هلاکوخان له خوا له منیځه لاړ، چنګیز خان ډیرې میرمنې درلودلې چې د خپلو دغو میرمنو نه یې ډیر اولادونه درلودل، خو په تاریخ کې د ده دغه لاندینی زامن ډیر مشهور دي، جوجی ،جغتای، او ګتای او تولی چنګیز ۲۵ کاله واکمنی وکړه او د دری اویا کلونو په عمر مړ شو، دده تر مړینی ورسته دده زوی اوکتای د چنګیز پر ځای واکمن شو.

# په ترکیه کې ناکام بغاوت او کامیاب قیادت

حسن مومند

دجولای په ۱۵نېټې دجمعې په ورځ دترکې ولس په عادي ژوند کې مصروف و؛ هیچادکومې نوې لویې پېښې تمه نه لرله اونه یې څه نښې ښکارېدې ؛ ناڅاپه دترکې تاریخي ښار استنبول ته دټانکونوقطار راننوت چې مخکې وروسته ترې فوځي لویې لارئ روانې وې اوپدې لاریوکې په عصري وسلوسمبال فوځیان داسې ښکارېدل لکه چې دجنګ ډګرته روان وي ؛فوځ په لږ ساعت کې د استنبول په مرکزي پلونواوسړکونو ټانکونه اوفوځي لارئ ودرولې او دباسفورس هغه پول یې هم قبضه کړ چې داستنبول دآسیااواروپابرخې سره یوځای کوي ؛ په څولمحو کې ایف ۱۶ ډوله الوتکې راښکاره شوې او ورسره یوځای جنګي هلیکوپتروهم تیټ پروازونه پیل کړل ؛ په همدې وخت کې داستنبول ترټولولوی داتاترک هوایي ډګرته ټانکونه ننوتل اوفوځ په بشپړ ډول داډګر قبضه کړ ؛ ددولتي تلویزون خپرونې بندې کړای شوې ؛ دصدارت ماڼۍ نه فوځ تاوشو؛ فوځ لوی درستیزجنرال هولوسي په خپل فوځي مرکزکې برمته کړ اوځنې نورې دولتي ودانۍ یې هم ونیولې.

دشپې د۱۱ نه پس فیس بک ، ټویټر اویوټوب بندکړای شول او فوځ دترکې دمنتخب دولت پرضد رسماًبغاوت اعلان کړ دتلویزون له لارې یې اعلان وکړچې فوځ پرټول هېواد واکمن دی ؛ په هېوادکې بیړنی حالت اعلان شویدی اودولتي چارې دامن یوه واکمنه شوری مخ په وړاندې بوځي ؛ دفوځیانو دې باغي ډلې دا اعلان هم وکړ چې هېوادکې به له دې نه پس نوی اساسي قانون رائج شي .

دفوځ دکودتا داعلان سره سم داستنبول په زیاترو برخو کې ډېره لویه چوپتیا خپره شوه ؛ خولږساعت پس داچوپتیا ماته شوه ؛ دتقسیم په څلورلارې کې ددولت دحامیانواوباغي فوځیانوترمنځ نښتې پیل شوې چې پکې ګڼ ولسي وګړي مړه اوټپیان هم شول.

دکودتا پرمهال ولسمشراردګان په تفریحي ښار مار مریس کې و چې له هماغه ځایه دیومختصرویډیويي پېغام په خپرولووتوانېدچې پکې یې له ولس وغوښتل چې له کورونو دې راووځي او ددولت پرضد دې فوځي بغاوت ناکام کړي .

نړۍ ولیدل چې دطیب اردګان دیوپېغام خپرېدوسره سم دترکې ولس سرکونوته راووت ؛دمرګ اوډردنه بې پروا داخلک دټانکونومخې ته څملاستل اودفوځ مخه یې ونیوله .

دفوځ او ولسي وګړوترمنځ ټوله شپه نښتې روانې وې چې پکې له ۱۵۰ زیاتو ولسي- وګړوخپل ژوندله

لاسه ورکړ ؛ ترسهاره فوځ دولس په مقابل کې دمقاومت توان له لاسه ورکړ اوپه ځمکه یې وسلې اېښودل پیل کړل ؛ دفوځ سره چې په کوموځایونوکې ټوله شپه نښتې شوی وې سهارپه هماغو ځایونو کې دفتحې اوخوښۍ جشنونه اوددولت په حمایت کې لاریونونه روان وو.

په ترکې کې دناکام بغاوت نه پس چې بېړنۍ حالت اعلان شوی واوترننه دوام لري په ترڅ کې یې په بغاوت کې دککړوتنانوپرضد دعملیاتولړۍ لاجریان لري؛ تراوسه د۱۱۸ جنرالانوپه شمول ۷۵۰۰فوځیان نیول شویدي او۱۵۰۰قاضیان او۸ زره پولیس دخپلودندونه گوښه کړای شویدي ؛ تراوسه د ۵۸ زرونه زیات تنان ددولت دعکس العمل سره مخامخ شویدي ؛ ددې لویې شمېرې نه داڅرگندېږي چې په بغاوت کې یواځې فوځ نه بلکې ددولت دنورو ارگانونوسره تړلي افرادهم شریک دي چې شاید ډېرژر له ټولوپرده پورته شي.

فوځ دهرهېوادترټولوستره سرمایه اویواځنۍ هغه دفاعي طاقت گڼل کېږي چې وجودته دراتلوسره سم یې دا ویل کېږي چې تري به دبهرنوخطرونونه ددفاع کار اخستل کېږي خوعموماًد دریمې نړۍ اوپه ځانگړې ډول داسلامي نړۍ په زیاتروهېوادونوکې همدا فوځ دنوروپه لمسون دمنتخبو ادارو دړنگولو ، دولسي پاڅونونودځپلو اود هېوادوالو دوژلو اوزنداني کولولپاره کارول کېږي ؛ تقریبا په هرځای کې فوځ ټاکلواهدافوته پر رسېدلوبریالي کېږي اوکله هم ندی ناکام شوی چې له دې وړاندې په همدې ترکې کې هم ۳ ځلې فوځ بغاوت کړی اوهرځل یې په ډېرې اسانۍ دولت ړنگ کړیدی.

داحقیقت دی چې دکمزوري اوبې وسلې ولس لپاره دوسله وال خونخوار فوځ په مقابل کې بریالیتوب اسان کار ندی ؛ بس داړومبی ځل دی چې فوځ د ولس په مقابل کې دناکامۍ سره مخامخ شو اویواځې دناکامۍ سره دمخامخ کېدلوپورې خبره پاتې نه شوه بلکې د ترکې هغه فوځیان چې ترپرونه یې ځانونه دترکې مالکان گڼل نن یې ټول عالم د ولس په مقابل کې دبې وسۍ اود ولس په لاس د بې عزتۍ نندارہ کوي.

هغه فوځ چې دعزت ،رعب اودهشت علامه گڼل کېدله نن دشرم اوبې عزتۍ مثال گرځېدلی دی .

پرکوم فوځ چې دداخله وزارت پولیس گولۍ وه وروي ؛دکوم فوځ نه چې بې وسلې خلک وسلې واخلي اودوهلواوټکولوترڅنګ تر ي فوځي یونیفارم وباسي هغه فوځ ته به څه مورال ورپاتې شي ؟

داداسې ستره بې عزتي وه چې تاریخ کې به یې ساری نه وي ؛ دې دترکې دفوځ مورال دخاوروسره خاورې کړچې تریوحده به دا ددولت لپاره هم دتشویش وړخبره وي ؛ دولت به غواړي چې دخپل فوځ عمومي مورال اوچت کړي خوژربه پرې ونه توانېږي .

پوښتنه داده چې دطیب اردگان په یوپېغام اویواوازکې دادومره زیات طاقت له کومه ځایه راغلو ؟

دترکې ولس ولې دده داداري دساتنې لپاره دسرونوقربانۍ ته تیارشو؟

کوم حاکمان چې اوږد حکومت وکړي عموماًترې ولس ناراض وي اودنوي حاکمیت راتلوته خوشالېږي ، دلته ولې طیب اردگان سره داوږ

حکومتــه نــه یــواځې داچــې خپــل محبوبیـت لـه لاسـه ورنکړبلکـې ورځ تربلې پکـې زیـاتوالی راغلـو ، داسـې زیـاتوالی چـې ولـس یـې دسرونوپـه قربانۍ بقاغواړي ؟

ددې پوښتنولنډجواب دادی چـې په کامل اخلاص دخپل هېواد او ولـس خدمت دطیب اردګان ددې دومره لـوی محبوبیت اومقبولیت سبب شویدی .

طیـب اردګـان د۲۰۰۲م نـه تـر ۲۰۱۴م پـورې پـه مسلسـل ډول درې ځلې په انتخاباتوکې بریالی او دترکـې لـومړی وزیرمنتخـب شـو؛ اوبیـا چـې دصدارت لپاره انتخابـات تـرسره شـول نـوپکې پـه قـاطع اکثریـت کامیـاب اونوروګوندونوته لـه احتیـاج او ورنـه دمرستې غوښتلوپرته دترکې ولسمشر- شو.

دطیـــب اردګـــان دامسلســـل بریالیتوبونه او اوس دهغه پـه یـواواز اویوپېغـام سرکونوتـه دولـس راوتـل اودمـرګ اودردنـه بـې پروادفـوځ پـه مقابل کې داسې کلـک ودرېـدل چـې ټـــانکونواوجنګي هـــلي کـــوپتروهم داردګان دحمایت نه پشـاکېدلو اوخپلـو کورونوته سـتنېدوته اړ نکـړای شـول بلکـې پخپلـه ټانکونـه اوطیـارې پشـا کېدلوته اړ شوې .

دامسلســل بریالیتونــه او دولــس داکلک حمایت څه د رسنیوله لـورې ده تـــه دزیـــات شـــهرت ورکولـــو؛ بیوروکراسـۍ کـې دهغـه اوج تـه درسېدلو یادمخـالفینوسره پـه سیاسي سوداګانوکې دکمال درجې ته درسېدلو له امله ندي بلکـې دولـس دبـې مثالـه خدمت ؛ په خپلوپښـودترکې دودرولـو اوپـه نـړۍ کـې دترکـې دخپـل مقـام دحصول لپاره دکامیابوهلوځلوپه نتیجه کې داهرڅه رامنځته شویدي .

دا مسلســل بریـــالیتوب او بــې سارې ولسي حمایت یې ځنې تنان پـه خپلو لیکنـوکې داسې تعبیـروي لکـه چـې دترکـې د ولـس پـه افکـارو کـې دمثبت بـدلون او پـراخ مـذهبي تمایـل یـواځنۍ پایلـه وي ؛حـال دا چـې خبره داسې نده .

هـو! دا دخوښـۍ ځـای دی چـې واک دعـــدل اوپرمختـــګ ګونـــد درسېدلونه پس په ترکـې کـې داسلام دنشأة ثانیـه نښـې راښـکاره شـویدي؛ داسلامي شعایرو قدر مخ پـه زیاتېـدو دی؛دســـیکولرزم پرضـــد نفـــرت او اسلامي لار ښوونو ته ژمنتیا هـم ورو ورو په خلکو کې ډېرېږي او دولت هم په تېرو کابو۱۵ کلونو کـې داسـلام او مسلمانانو په ګټه ګـڼ اقـدامات تـرسره کړي دي خو ددې هر څه سره لاهـم په ترکې کې دسیکولرزم رېښـې پـوره کمزورې شـوې نـدي او پـه ۷ لسـیزو کې ترکرغېږن چتر لاندې پیدا شوي او راستر شـوي ترکـان دومـره نـدي بـدل شوي چې څوک دې ورنـه داسـلام پـه نوم رایې وغوښتلای شي ؛ یا دې کـوم ګوند ته یواځې له همـدې املـه زیـاتې رایې ورکـړي چـې اسلام خوښـی دی اویـادې دیودولـت ترشـا لـه دې املـه کلک ودرېږي چې دمشرانوپه اړه یـې دامشهوره ده چې داسلام سره ډېره مینه لري .

موږ دا منو چې دترکـې دینـدارې طبقې به دنیوي خبرې پـه پـام کـې نـه وي نیـــولې او یـــواځې داســـلام سره دمینــې پربنســټ بــه یــې هرخـل طیـب اردګان ته رایې ورکړې وي خو دترکې عامو خلکو دعدل او پرمختګ دګونـد دمشرـــانو دخپـــل هېواداوملـــت سره اخـلاص ، ددوئ خدمت،دفسـاد پرضـد اوړدې مبـــارزې،ټولنیزو اصـــلاحاتو، دترکــې داقتصــادي پرمختــګ لپــاره کامیابو پروګرامونو او هڅو ته لېـدلې

او له همدې امله یې هرڅل زیاتې رایې ورکړیدي اوترننه یې ترشا ولاړ دی .

دایقینـــي خـبره ده چـې ولســـونه دحاکمانوکړنوتــه گـــوري اوهماغســـې غبرگون ښایې .

اردگان پـه ۱۹۹۴ کـې دسیاسـت ډگر ته راووت ؛ دنجم الـدین اربکـان درفاه گوند دیوفعال غړي په حیـث یـې دښاروالیولپاره په ترشویوانتخاباتوکې گــډون وکـــړ اوپـــه انتخابـــاتوکې دبریالیتوب نه پس داسـتنبول ښـاروال شو دتـاریخي ښـار اسـتنبول ښـاروال کېــدل دده لپـــاره دښـــه خـــدمت ، شـهرت،مقبولیت او پـه مسـتقبل کـې دبریالیتوبونو دترلاسه کولو ښه موکـه وه چې ده هم ددې ښې مـوکې نـه ښـه گټه پورته کړه او هغه ټول څه یې ترې ترلاسه کړل چې باید ترلاسه کـړی یـې وای .

اســـتنبول دنـــړۍ دمشــــهورو ۱۰ښـارونوڅخه یـو دی خـو داردگـان دراتلونـه وړانـدې ددې ښـارحالت پـر هغـه لـور روان شـوی وچـې نـوریې دشریفو وگړولپاره داوسېدو قابلیت لـه لاسه ورکاوه؛ له هرڅه پکې دقماربازۍ مرکزونه ؛نایټ کلبونـه ؛دشراب څښـلو اوفحاشـۍ اډې زیـاتې وې؛ بـد امنـي پکې دې حد ته رسېدلی وه چې په رڼا ورځ به هم لاروکوڅو کې خلک لـوټ کېدل او ککړتیا یې دومره زیاته شوی وه چـې دلتــه دســیلانیانوراتلل ورځ تربلې کمېدل.

اردگان چـې داسـتنبول ښـاروال شوهغه مثبت بدلونونـه یـې راوسـتل چې هغه بایدکارنامې نه بلکې تاریخي کرشمې وبلل شي ؛ په ډېـر زړورتـوب یې دفسـاداوټولوبداخلاقیو دمخنیـوي لپاره عملي گامونه پورتـه کـړل ؛پـدې لارکې یې دولسمشرځنډ کېدل هم ونـه منل او نـه یـې دهغـه څـه پروا ولرلـه ؛اسـتنبول چـې داداري فساداورشـوت خورۍ په زالې بدل شوی وونه یواځې داچـې پـدې ښـارکې یـې اداري فسـاد صـفرته راکـوز کړبلکـې دفـلاح عامـه گټـې پـروژې یـې پیـــل اوپـــه ډېـــر بریـالیتوب یـې سرتـه ورسـولې ؛ پـه استنبول کـې دترانسـپورت ډېـره لویـه ستونزه وه هغه یـې حـل کـړه ؛ فضـایې ککړتیا یـې لـه منځـه یـوړه ؛ ددولتـي ښوونځیومعیار یـې لـوړ کـړ؛ دښـاري پولیسونه په ښه کار اخستویې مثـالي امن راوستلو؛ دارزانه توکیوخصوصي سیکتور یې قائم کـړ اونـورگڼ داسـې مثبت بدلونونه یې رامنځتـه کـړل چـې له امله به یې هغه په ترکـې کـې دښـه ماموریـه صـفت دنمـونې پـه توگـه وړاندې کولای شو.

داچـې داسـتنبول دښـاروال پـه صفت دهغه همدې خدمتونو هغه ته ښه شهرت وروبښلو نو چې هغه کله درفاه گوند پرېښود او په ۲۰۰۱ م کـال کـې یـې دعـدل او پرمختـگ گونـد بنسـټ کېښود نو په راتلـونکي کـال کـې پـه ترکې کې په ترسره شویو انتخاباتو کې یې حیرانونکې کامیابي ترلاسه کړه او هغه دلومړي ځل لپـاره دترکـې لـومړی وزیـر شـو؛د ۲۰۰۷م پـه تـرسره شـویو انتخابـاتو کـې یـو ځـل بیـا د عـدل او پرمختگ گوند بریـالیتوب ترلاسـه او طیب اردگان د دوهم ځل لپاره د ترکـې لومړی وزیر شو او په دریـم ځـل چـې بیا په۲۰۱۱م کې انتخابات ترسره شول نوسره له دې چې مخالفینو ستر اتحـاد جوړ کړی او د طیب اردگان دراپرزولو لپاره یې ډېری زیـاتې هڅـې کـړې وې خـو بیـا هـم د طیـب اردگـان گونـد دانتخاباتو گټونکی شـو،طیب اردگـان په دریم ځل هم د ترکـې لـومړی وزیـر شو او خپلـې درې واړه قـانوني دورې یې د یوپه بل پسې په پرلپسې ډول پـه ډېرې کامیابۍ پوره کړې .

د طیب اردګان د دې ټولو کامیابیو ترشا د هېواد دهر ډول پرمختګ لپاره د هغه نه ستړی کېدونکې پرلپسې هلې ځلې دي ؛هغه او د کار ډلې یې د هر بریالیتوب نه پس د تېر ځل نه په راتلونکې کې په زیات اخلاص دډېر خدمت په هوډ کار پیل کړی، تل یې خپل مستقبل ته کتلي دي ؛ ماضي یې هېره کړیده او که رایاده کړی یې ده نو یواځې د دې لپاره چې پکې شوې خطاګانې په راتلونکې کې بیا تکرار نه شي.

په ۲۰۰۲م کې چې د عدل او پرمختګ ګوند واک ته ورسېد، تر ننه په واک کې دی ؛په دې تېرو ۱۴کلونو کې چې دې ګوند په ترکیې کې کوم پرمختګونه ،اصلاحات او مثبت بدلونونه رامنځته کړل فهرست یې ډېر اوږد دی چې پدې کوچنی مقالې کې د ټولو یادول ناشوني دي خو که یواځې اقتصادي پروګرامونو او پرمختګونو ته ځغلنده کتنه وکړو نو هغه هم خورا ستر، له تمو ډېر پورته او حیرانونکي دی.

د طیب اردګان همدې کامیابو اقتصادي پلانونو که له یوې خوا په اقتصادي لحاظ دا وروسته پاتې ترکیه په پرمختللې ترکیې بدله کړه نو بل لورته یې په ولس کې د اردګان په محبوبیت کې تر ټولو زیاته ونډه ادا کړه .

واک ته درسېدلو سره سم طیب اردګان سترې ملي پروژې پیل او په عالي نظم او لوړو تخنیکي مهارتونو یې تکمیل کړې.

په ۸۰ یمې او ۹۰ یمې لسیزې کې دترکیې اقتصاد دسخت تنزل ښکار و اوپه‌دې وروستیوکلونوکې چې دیونان داقتصاکوم نا وړه حالت و دترکیې داقتصاد حالت هم همدې ته ورته و ؛ دولت خپلو مامورینوته دمعاشاتو ورکولوتوان هم نه درلودلو؛ مامورینوته به معاشات هم د (آی ایم ایف ) نومي نړیوالې ادارې نه داخستل شوو قرضونوله لارې اداکېدل .

دآی ایم ایف په نوم دیهودو نړیواله مالیاتي اداره هغه اداره ده چې دسودي قرضونو له لارې یې داسلامي نړۍ ټول هیوادونه یرغمال کړیدي ؛ ترکیه هم دهمدې هېوادونوپه قطارکې ورشامله شوی وه اوپرې ددې ادارې دقرضونوحجم ۲۴ ملیاردوډالروته رسېدلی و.

کله چې په ۲۰۰۲م کې اردګان لومړی وزیرشو نودااردګان ادارې ددې پورونو اداکولوته ملا وتړله تردې چې په ۲۰۱۲م کې یوملیاردډالروته راټیټ شول ؛ په همدې کال هغه دا هم اداکړل اوترڅنګ یې دا اعلان هم وکړچې له دې وروسته به مونږ آی ایم ایف ته لاس نه وراوږدووبلکې دنوموړې ادارې داړتیا په صورت کې به مونږ پورونه ورکوو.

اوس رښتیا هم چې ترکیه ددې وړ ګرځېدله ده چې ترې نوموړې اداره پورونو غوښتلو ته اړ ده.

په هماغه ړومبي ځل چې دطیب اردګان دعدل اوپرمختګ ګوند بریالیتوب ترلاسه کړنوداسې اقدامات یې وکړل چې په (جي .ډي .پي ) یانې ملي عوایدوکې ۶۴سلنه بې ساري زیاتوالی راغلو، که دیوهېواد په ملي عوایدوکې د۷ نه تر ۸ سلنې پورې زیاتوالی راشي داډېرلوی پرمختګ ګڼل کېږي نوځکه ۶۴سلنه زیاتوالي ټوله نړۍ حیرانه کړه .

د اردګان دراتلو سره سم چې دترکیې اقتصاد پرمختګ پیل کړی و نو چې له جرمني پرته په ټولې اروپا کې اقتصادي بحران رامنځته شوی و

په هماغه شپو ورځو کې هم دترکې اقتصادي وده له ۵ فیصده لوړه وه؛ داردگان په تېرو ۳ دورو کې داسې کلونه هم راغلي دي چې اقتصادي وده پکې دچین داقتصادي ودې برابره یانې ۱۰ فیصده ته لوړه شویده ؛ په ۲۰۱۲ کې دترکې اقتصاد دنړۍ دترټولو تېزو اقتصادونو څخه یو و؛ په نړیواله سطحه دترکې اقتصاد ۱۷م اقتصاد ګڼل کېږي خو اردګان په پوره باور سره وایې چې تر ۲۰۲۰م کال پورې به دترکې اقتصاد دنړۍ دړومبۍ کرښې په ۱۰ اقتصادونو کې شمېر شي او تر ۲۰۲۵م کال پورې به دهر اوسېدونکی کلنې عوایدله ۲۵ زروډالرونه کم نه وي یانې په اقتصادي لحاظ دنړۍ دترټولو پرمختللي هیواد داوسېدونکو دکلنې عوایدو نه به دترکې داوسېدونکو عواید کم نه وي.

په ۲۰۰۲م کې دترکې په مرکزي بانک کې دشتو پیسو حجم ایله ۲۵ملیاردو ډالروته رسېدلو؛ په ۲۰۱۱م کې ۲/۹۲ ته لوړ شو او اوس په ۲۰۱۶م کې دمرکزي بانک پانګه ۱۳۵ ملیارده او۳۳۵ملیونوډالروته رسېدلې ده .

لیرا دترکې پولي واحد دی ؛ دتېروفاسدو دولتونو دحاکمیت پرمهال دبهرنواسعارو په مقابل کې لیراپه مسلسل ډول خپل ارزښت له لاسه ورکولوتردې چې په ۲۰۰۲م کې یو ډالر په ۲۲۲ لیروبدلېدلو ؛ واک ته دطیب اردګان د رسېدلونه پس دلیرا قیمت په ډېرې تېزۍ مخ په لوړېدو شو تردې چې نن یوډالر د۲ لیرواو۷۵ پیسویانې ۷۵/۲سره تبادله کېږي .

همدادطیب اردګان هڅې دي چې ترکیه نن په هغو ۹ بډایو اروپایې هېوادونوکې شمار ده چې تجارتي خساره یې ترټولو ټیټه ده .

طیب اردګان ښوونې او روزنې ته دومره توجو کړیده چې په ۲۰۰۲م کال کې په ټولې ترکې کې ۸۸ پوهنتونونه وو خو یواځې په ۱۰ کلونوکې یانې د۲۰۱۲م کال پورې په هېوادکې دپوهنتونونوشمېر۱۸۶ ته ورسېد ؛ یواځې په یوې لسیزې کې کابو ۱۰۰ پوهنتونونه جوړول ډېره ستره کارنامه ده .

د۲۰۰۲م کال نه وړاندې په ترکې ۲۶ کوچنې اوستر هوایې ډګرونه وو خو واک ته دطیب اردګان درسېدونه پس تر ننه پدې هېواد کې دهوایې ډګرونوشمېر ۵۰ ته ورسېدلو .

طیب اردګان ډېرې هڅې وکړې چې دهېواد ټولې برخې دلویوسرکونو له لارې دیوبل سره وتړي اوپه تلوراتلوکې ټولې ستونزې له منځه ولاړې شي ؛ هغه دخپل واک په مودې کې په ټول هېوادکې تر۱۷ زره ۵ سوه کلومتروپورې نوي سرکونه جوړ کړل او په ترکې کې یې دلومړي ځل لپاره دتېز رفتار اورګاډي پټلۍ وغزولې .

او په استنبول کې یې دملیاردونو ډالرو په لګښت دسمندر لاندې داسې ستر تونل جوړ کړ چې دځمکې له لارې یې آسیا داروپا سره وصل کړه؛دا تونل چې په یو وخت کې دلاریو،موټرو او اورګاډي دتېرېدو ظرفیت لري وجودته ددې تونل دراتلونه پس ترکې ته دځمکې له لارې دسیلانیانو په راتلوکې ډېر زیاتوالی راغلی او دتجارتي مالونو په صادرولو او واردولو کې هم ډېره اساني راغلې چې له امله یې دترکې اقتصاد ته بې سارې ګټه رسېدلې ده.

دنړۍ په کابو ټولو هیوادونو کې بې کاري ورځ تربلې زیاتېږي خو ترکې کې برعکس دکار مواقع ورځ

تربلې ډېرېږي نو ځکه دلته په باسواده ځوانانو کې دبې کارۍ کچه د ٪۱۵ نه ٪۹ تـه راکـوزه شـويده او نـور هـم دراکوځېدو په حال کې ده.

دترکې بانکې نظام دومره په خپلو پښـو ولاړ او ځـواکمن دی چې هغـه اقتصـادي بحـران چـې دنـړۍ ډېـرې سـترې اداري يـې ديواليـه کـړې وې دترکې په بانکي نظام هـيڅ ډول نـاوړه اغيزه نه وه شوې؛په ترکـې کـې پـولي انفـلا سـيون (داجناسـوپه قيمتونـوکې زيـاتوالی )د ۳۰ فيصـده نـه ۷.۴ تـه راکوز شـويدی چـې لـه املـه يـې پـه ترکې کـې دگرانـۍ کچـه ډېـره راټيټـه شويده.

اردگان يواځې دښارونو نه بلکـې دښـارونو او اطرافـو دواړو پرمختـگ ته برابـره توجـو کړيـده نـو ځکـه ددې هيواد زراعت هم دومره وده کړيده چې له لارې يې ملي بوديجې ته راتلونکي عوايد د ٦۲ ملياردو ډالرو نه اوړيـدلي دي.

داپرمختگونـــه اوترڅنـــگ يـــې اسـلامي نـړۍ تـه دترکـې دورنېـږدې کولـوهڅې اوپـه ترکـې کـې داسـلام دنشأت ثانيه تېزکوششونه امريکـا تـه دزغم وړنه وونوځکه په پرله پسې ډول داردگان داداري اودعـدل اوپرمختـگ دگونـد دکمـزوري کولولپـاره شـوم پلانونه په کاراچوي چې اوسنی فوځي بغاوت يوله همدې شـوموپلانونوڅخه دی .

دامريکا په نوم دنړۍ ی هغه لوی شيطان چې په ټولې اسلامي نړۍ کـې دبدامنۍ اورته لمن وهي اوس له چاپټه پاتې نده چې دترکـې دبغـاوت ترشـاهم دهماغه امريکا لاس دی

اوس ډېرهغـه دلايـل پـه ډاگـه شويدي چې په کودتاکې دامريکا لاس لرل په ډاگه کوي مثلاً دکودتا پرمهـال چې دمارامیس په کوم ځای کې طيـب اردگان شتون درلود،بـاغي فوځيانوتـه هغـه ځـای دامريکـا جاسوسـو ادارو ورپه گوته کـړی و؛ باغيـانو داردگـان دوژلوهڅه وکړه خوپکې ناکام شول .

همدا راز په ترکې کـې انجرلـک نومي دامريکافوځي اډې کې دبغـاوت پرمهال دبـاغي فوځيانوطيـارې ښـکته کېدلې اوخپلې دتېلوټانکئ يې همدلته ډکولې .

دبغـــاوت پرمهـــال دامريکـــا ولسمشراوباما دبغـاوت دغندلونـه ډډه کوله خوچې کلـه ناکـام شـونوبيا يـې دطيب اردگان حمايت وکړ .

همـــدارازچې کلـــه دباغيـــانو اودباغيـــانوسره دمرســـته کونکـــوپر ضدتصـــفيوي عمليـــات پيـــل شـــول نوامريکا اعتراضات پيل کړل.

دنـړۍ پـه هرهېـوداکې بـاغي فوځيان په نظامي محاکموکې محاکمه کېـږي ، دطيـب اردغـان اداري هـم دهمدې اصولوله مخې په بغـاوت کـې ککړ۱۴۹ جنرالان فـوځي محاکموتـه وړاندې کړيدي چې پـدې امريکـا پـه ډېـرې سـپين سـترگۍ خپـل نارضـايت ښکاره کړيدی اواوس دروانې جـولای مياشتې په ۲۸مې نېټې دامريکا دفوځ دمرکـزې کمېټـې مشرـجنرال جـوزف ويـلې دي چـې دگېنوفـوځي جنرالانـو توقيـف بـه دترکـي اوامريکـا تـرمنځ روان فوځي تعاون اغېزمن کړي .

ديادامريکايې جنرال داڅرگندونې چې دترکې په کورنيوچـاروکې بربنـډه مداخله وه نوځکه يـې پـه مقابـل کـې ولسمشراردگان سخت غبرگـون وښـود اوويـې ويـل چـې :پرځـای ددې چـې دبغاوت په ناکـامولومودترکې ددولـت نه مننه کـړی وای تاسـودباغيانوحمايت کوئ ؟!

خولنډه داچې داسې ډېرزيات شواهد شتون لري چې ټول پدې جرم کې دامريکا داعانت ګواهي ورکوي .

دسوړجنګ په زمانه کې چې امريکا ددريمې نړۍ په ګڼو هېوادونوکې دکودتاګانوپه رامنځته کولوبرياليۍ شوی وه تراوسه يې ددې کودتاګانوترشا پرلاس لرلواعتراف ندی کړی نو اوس به ددې ناکامې کودتا ترشا په لاس لرلو څه اعتراف وکړي ؟

دناکامې کودتا مثال خودحرامي ولد وي چې هرڅوک ترې ځان رانغاړي .

داسې موثق معلومات شته چې ځومياشتې دمخه دروسې ولسمشر- پوتين خپل سلاکار الګزاندر ډوګين په پټه انقرې ته استولی وچې هغه دترکې قيادت ته ويلي ووچې داردګان داداري پرضدامريکا په لمسون يو فوځي بغاوت کېدونکی دی ؛ نوموړي دځمکنواوهوايې ځواکونو دځينو جنرالانو او لوړپوړو افسرانو نومونه هم ددولت مشرانوته په کوته کړي وکوموچې ددې کودتا لپاره پلان جوړولو .

له همدې امله داردګان اداري د ۲ زره فوځيانو يوپټ لست عدلې ته ورکړ او ورځنې ويې غوښتل چې ددوئ پرضد دې قانوني کړنه ترسره شي ؛ خوپرځای ددې چې ددې کودتا دمخنيوي په موخه عدليه ددې فوځيانوپرضد په حرکت کې راغلی وای برعکس يې ځني فوځي جنرالان ددولت ددې ارادې نه خبرکړل چې له امله يې دې فوځيانو په تادۍ کودتا وکړه .

په ترکې کې دفوځي بغاوت انکشاف روسې هغه مهال کړی و کله چې ځومياشتې وړاندې دروسې ايس يو ۲۴ ډوله جنګي الوتکو دراغورځولوپه موخه دوه ترکي پيلوټانوپه خپلومنځونوکې پټې خبرې کړی وې ؛ ددې دواړو پيلوټانو خبرې دروسې جاسوسوشبکوثبت کړی وې چې پکې دامريکا په لمسون دروسې دطياري دراغورځولو ذکر وچې په نتيجه کې په لويه پيمانه دترکې او روسې دروابطودخرابېدواوبيا دکودتا دکاميابېدوخبره هم شوی وه .

دالګزانډر ډوګين دراتلونه پس ښاغلي طيب اردګان دپوتين په نوم په استول شوي خط کې دترکې له لورې دروسې طيارې دراغورځولوپه پېښه بښنه وغوښتله چې له امله يې ددواړوهېوادونوپه روابطوکې ښه والی راغلو او داوسني بغاوت پرناکامۍ ولسمشرپوتين طيب اردګان سره تليفوني تماس قائم کړ او ورته يې دکودتا پرناکامۍ مبارکي وويله اودترکې سره دلا زياتومرستوکولو امادګي يې وښووله.

په اوسني بغاوت کې دامريکا دلاس لرلوپولوی دليل داهم دی چې هغه ترکی پيلوټ چې دروسې طياره يې رانسکوره کړی وه په اوسنۍ کودتا کې يې ډېره مهمه ونډه درلودله اوبل داچې په ترکې دامريکا فوځي هوايې اډه دهوايې بريدونه لپاره وکارول شوه اوناکاموباغي فوځيانو همدلته پناه واخسته چې له امله يې دطيب اردګان اداري ددې امريکايې اډې برق پرې کړ ځکه خو دبغاوت نه ۴ ورځې پس نړۍ ته دځان ښودلو لپاره اوباما طيب اردګان سره تليفوني تماس ټينګ کړ او دستونزې دسوله ايز حل غوښتنه يې ورځنې وکړه .

دبغاوت ترشا دامريکا لاس درلودل خو هسې هم اوس پټ پاتې ندي خو داسې ښکاري چې دايواځې امريکا نده بلکې اروپايې هېوادونوهم دکودتا کاميابي اواردګان داداري

ړنګېدل غوښتل نوځکه دکودتا پرناکامۍ په اروپاکې ډېره مایوسي خپره وه اورسنیودارد‌ګان پرضدډېرپوچ تبلیغات کول.

د کودتا دمخنیوي اودامن دقیام لپاره چې څرنګه طیب اردګان په هېواد کې د۳ میاشتولپاره بیړنی حالت اعلان کړنواروپایې اتحاد(چې دکودتا په ناکامۍ سخت ناهیلی و) غوغاجوړه کړه اوددې اتحادکمشنرجوهانس او دباندنیوچارومشر فیډریکاموګریني وویل چې طیب اردګان دترکې دقانون داصولو خلاف دمخالفینو دتصفې اوتطهیر لړۍ پیل کړیده چې دادانساني حقوقوضد عمل دی نودملو وړندی.

باغي فوځیانوکابو۳ سوه پولیس اومظاهرچیان ووژل ؛ دترکې دقانوني اومنتخب ولسمشردوژلوهڅې یې وکړلې خوپکې ناکام شول ؛ دهېواد لوی درستیزیې برمته کړ ؛ په پارلمان اودملي امنیت په ودانیویې بمباروکړ اودیومنتخب قانوني حکومت درانسکورولو هڅې یې وکړې ؛ دیومهذب ولس په منځ کې اوپه هغه هېوادکې چې پکې دقانون حاکمیت وي داډېرستر جرمونه دي ؛ددې قاتلینو او مجرمینو پرضدچې اوس اصولي اوقانوني هراقدام کېږي اوهرڅومره سخته سزاورکول کېږي هیڅوک پرې باید اعتراض ونکړي اونه داعتراض حق لري .

خواسلام دښمنې لویدیځې نړۍ ته وګوره چې پټوسترګودقانون په حاکمیت اعتراضونه کوي اوخپله اصلي څېره خلکوته ښکاره کوي ؟!

په نا اسلامي نړۍ کې ددې جرمونوپه پرتله په ډېرو کوچنو جرمونو سختې سختې سزاګانې ورکول کېږي ؛ دملګروملتونواداره ؛ لویدیځه ټولنه اروپایې اتحاد؛ دبشردحقوقو ادارې او نه یې هم بل څوک نه پرضد آواز اوچتوي اونه یې ظلم ګڼي خودترکې په څېر په اسلامي هېوادکې بیا داټول معیارات بدل وي ؛ سترمجرمین چې دقانون منګلوته دسپارلولپاره نیول کېږي نوبیایاداتحادونه اوادارې غوغاجوړه کړي اوداسې تبلیغات پیل کړي لکه چې دبېخې بې ګناه انسانانوپرضدپه هغه هېوادکې ددولت له لورې لوی ظلم روان وي.

داروپایې اتحادبې انصافۍ ته وګورئ چې په فرانسې کې دنومبر دپېښې نه پس دولت پدې هېوادکې د۶ میاشتولپاره بیړنی حالت اعلان کړچې په ترڅ کې یې دفرانسې پولیس اوفوځ په لویه پیمانه تیونسي ،الجزائري اومراکشي نژادي فرانسوي مسلمانان نیسي اوزندانونوته یې وړي ؛ په ټوله کې ټولو مسلمانانوته دشک په نظرکتل کېږي اوله خبرورکولوپرته یې کورونوته امنیتي ځواکونه ننوځي ؛ فرانسې دالړول شوی بېړني حالت د۶ نورومیاشتولپاره هم تمدیدکړ ؛ دفرانسې ددې ظلم په مقابل کې داروپایې اتحادله لورې هیڅ عکس العمل رامخې ته نه شو؛خوپه همدې ورځ چې په ترکې کې طیب اردګان د ۳ میاشتولپاره بېړنی حالت اعلان کړ نود اروپایې اتحاد چغې تر اسمانه پورته شوې ؛ دبې ایمانۍ ، دروغجنتوب ،فریبکارۍ اودوه مخیتوب هم څه حدود اوپولې وي ؛ متأسفانه چې په اسلام اومسلمان دښمنۍ کې لویدیځ له دې ټولو پولو اوړي .

دفرانسې نه څوک ولې نه پوښتي چې ددوهم نړیوال جنګ نه پس مووليې دهېواد سره دغدارۍ په تورخپل پخوانی دباندنیوچارو وزیرپه

همېشني حبس اوځپل ولسمشردمرګ په سزامحکوم کړ؟

همدا راز داپوښتنه هم ضروري ده چې ددوهم نړیوال جنګ نه پس چې په NUREMBERG کې دامریکا اوبرتانې له لورې دجنګي جرمونولپاره جوړشـــویومحاکموکې شکســـت خوړلي نازي جرمنیان دمرګ اوعمـري بندپه سزاګانومحکومېدل نواروپايي اتحادولې دامریکا اوبرتانې پدې عمـل تراوسـه ولـې اعـتراض ونکړاونـه یـې داعمل ناروا وګڼلو ؟

په مصرکې چې خونخـوار جـنرال السیسيـــــ دمـــــــصرمنتخبه اداره رانســکوره ؛ دهېوادمنتخـب ولسمشر-محمـــدمرسي ، ددولـت ارکـان اوپـه لسګونه زره مسلمانان دزمـانې بـدنامو زندانونوتـــه واســـتول ؛ دکوچنیـــانو، مېرمنواوبوډاګانوپـه شـمول یـې لـه ۴ زرونه زیات هغـه بـې ګنـاه مسـلمانان شهیدان کـړل چـې دمحمـد مـرسي نـه دحمایـت ښـکاره کولولپـاره سرکونــو اوچوکونـــو تـــه راوتي وو اودهغــه دراخوشـی کېدوغوښتنه یـې کولـه ؛ دمصر-ددې قصـاب داوحشـت ولـې اروپايي اتحادته نه ښکاري؟

اروپـایي اتحادنـه یـواځې داچـې دجنرال السیسي ددې وحشت پرضدیې نه څه اقدام وکړ اونه یې خوله خلاصه کړه بلکې دا اتحادپه ښه سپین سترګۍ دالسیسي ترشاودرېد ؛ ډاډ یـې ورکـړ اوپدې هرڅه کې یې تـرې خپـل کامـل حمایت ښکاره کړ.

دوحشي-جـابرجنرال السیسي-دظلم ښکارشوي داوګړي انسـانان نـه وو؟ اروپـايي اتحـاد تـه دلتـه ولـې دبشرحقوق نه ورپه زړه کېدل ؟

دهمدې ۲۰۱۶م کال نومبرپـه ۱۳ مې نېټې چې په فرانسې کې په تـرسره شویوبمي بریدونوکې ۱۳۰ فرانسـویان ووژل شول او اوس بیا چې دجـولایې په ۱۴مې نېټې یوتن خپله لارۍ جشن تـه پـه راوتوتنانووروخېجولـه او۷۷ تنـــانوپکې خپـــل ژونـــد لـــه لاســـه ورکړنوامریکا اونورلویدیځ پرې څومره غوغاجوړه کړه؟! خـوچې پـه مصر کې دغریبو مسلمانانو پرضـد وحشـت روان ونودامریکا اونورلویدیځ پرې غوږ هم نه ګراوه .

په بنګله دېش کې چـې دجماعـت اسلامي مشران یودبل پسې پـدې جـرم وژل کېږي چې ۴ لسیزې وړاندې یـې دپاکســـتان نـــه دبنګلـــه دېـش دجـدا کېدوسره خپـل مخالفت ښکاره کـړی ونوهغوئ خوهم انسـانان دي اروپـايي اتحادته ددولت پردوئ دالوی ظلم ولې نه ښکاري ؟

په همدې ترکـې کـې چـې هرځـل فوځ دمنتخب دولت پرضدکودتاکړیده نودفوځ له لورې ښه ډېرملکي مشران دمـرګ پـه سـزامحکوم شـویدي خـو امریکا اوداروپايي اتحادپه شمول ټول لویدیځ یې تماشه کړیده اوهیڅکله یې دترکې پرفوځ اعتراض ندی کړی اقدام خولری خبره ده .

داروپايي اتحـاددې اعتراضـونو نه همداخبره جوتېږي چـې دنورلویـدیځ



هم تریوحده ددې کودتا ترشا لاس و او ورنه کودتاچیانو داکلکه تمه لرله چې خامخابه یې دکامیابۍ په صورت کې حمایت وکړي .

هغه غربي رسنۍ چې دپیل په کلونوکې یې داردګان داقتصادي فتوحاتوداستانونه بیانول ؛ دقتصادي پرمختګ ترڅنګ به یې د ګڼو نوروپرمختګونوله امله دده داداري ستاینې کولې اوداسلامي هېوادونو لپاره به یې دنمونې په ډول وړاندې کولو ،خوکله چې طیب اردګان اسلام اومسلمانانوته دترکې دورنېږدې کولوهڅې وکړې اوپدې اړه یې ګڼ اقدامات وکړل چې پکې کامیاب شوی هم دی نو په همدې جرم دلویدیځ رسنیوداردګان پرضد تبلیغات پیل کړیدي ؛ لویدیځې رسنۍ په متواتر ډول داوایې چې اردګان دعثماني خلافت داحیاء فکرلري ، ځان سلطان جوړول غواړي او د دیکتاتورۍ لورته یې خپل نظام روان کړیدی .

دابايد له یاده ونه باسو چې په ترکې داسلام اوسیکولرزم شدیده مقابله روانه ده چې پکې سیکولرزم دسختې ماتې سره مخامخ دی اوداخبره اوس یقیني شویده چې سیکولرزم په خپل طبعي مرګ دمړینې پرلورپه ډېرې تېزۍ سفر رالنډوي او داسلامي بدلون څپو انقلابي شکل خپل کړیدی .

دترکې ټول مخلص مسلمانان پدې پوهېږي چې اوسنۍ بغاوت چې په ښکاره دجمهوریت اودیکتاتورۍ ترمنځ دکشمکش شکل لري په حقیقت کې داداسلام اوسیکولرزم ترمنځ دروان جنګ یوه مهمه برخه اویوځل بیا ددې هېوادولس دغلام ګرځولو ناکامه امریکایې هڅه ده .

اردګان په خپلوتېرودوروکې خپل ولس ته ترغیب ورکړچې دمغرب پرځای دې مشرق ته مخه کړي ؛ ولس عملاً دطیب اردګان داپیغام قبول کړیدی اوپدې اړه دښاغلي اردګان سره اوږه په اوږه ولاړ دی.

داڅه هسې تصادف نه وچې طیب اردګان درسنیوترمخه داسرائیلو لومړی وزیر شرمنده کړ.

غزې ته ددواګانواوغزایې موادونه ډکه دفلوټیلا سمندري قافلې استول اوپرې داسرائیلودحملې نه پس داسرائیلوسره دیپلوماتیکې اړیکې شلول هم په حقیقت کې دهغه لویدیځې نړۍ اوامریکا په مقابل کې عکس العمل ښکاره کول ووکوم چې داسرائیلودهروحشت تر شاولاړ دي.

دغزې اوبرما دمسلمانانوپوښتنه اوپه حق کې یې اواز اوچتول ؛ په بنګله دیش کې دحکومت له لورې دجماعت اسلامي دمشرانو اعدامېدلو په مقابل کې دغبرګون ښکاره کولوپه موخه دبنګله دیش نه دخپل سفیر راغوښتل اودبې ګناه مصري مسلمانانو په قتل عام دالسیسيـ داداري سره دروابطو خرابېدل ددې خبرې دلیل دی چې په تېرو۱۴کلونوکې ترکیه ډېره بدله شویده .

امریکا اونورلویدیځ ته په ترکې کې دابدلون دمنلوندی نوځکه داردګان داداري پرضد دسیسې جوړوي خو د امریکا ټولې هڅې ناکامېږي اودترکې نه بیا دکمال اتاترک دترکې جوړولو ټول کوښښونه یې دخاوروسره خاورې کېږي ځکه چې دولس قاطع دسختۍ اواسانۍ په هرحالت کې دطیب اردګان ترشا ولاړدی اودکومو حاکمانو ترشا چې ولسونه ولاړ وي دنړۍ یودسیسه ګرځواک یې هم له پښونشيـ غورځولای بلکې داخلي اوخارجي دسیسه ګریې په مقابل کې ناکام اوټولې دسیيسې یې افشا کېږي.

# د شهامت دارالافتاء

## د[Exp-date] بدلول شرعاجواز لري ؟

پوښتنه : السلام عليكم ورحمة الله وبركاته : محترم مفتي صاحب ! موږ ددارو درمل يوشركت لرو چې له بهر [خارج ] څخه دواوي راواردوو.

په دې دواوو كې ځينې داسې دواوې شته چې ورباندي ليكل شوى تاريخ ] ايكسپاير ] يې پوره شوى وي ؛ مگر بياهماستعمال يې تاوان نه لري ،نوكه موږ يې تاريخ بيـ رته وربدل كړو ددې لپاره چې هم له تاوان څخه ځان بچ كړو اوهم دارو درمل عبث نشي نوشرعاداعمل جائز ده اوكنه ؟

الجواب : هغه تاريخ اوتحرير چې دكمپنۍ لخوا په دواو ليكل شوى وي هغه له هماغه تاريخ څخه وروسته بيلابيل ضررونهاوتاوانونه لري . ځكه هغه كمپنيو ته ددغه موادو ذات ، كيفيت اوكميت ښه معلوم دى اودهمدغه معلوماتو له مخې يې وربانديدختم الميعاد تاريخ تحريركړي دي ،داسلام په دين كې دتحريف او تصحيف عمل ډيرغندل شوى ،اورسول الله صلى الله عليه وسلم دغش اوخيانت څخه دځان ساتلو ډير وضاحت وركړى دى.

نوپه دې عمل كې څوډوله گناهونه سرته رسيږي :چې هره يوه يې په خپل ځاى لويه گناه گڼله كيږي .لكه: تحريف، كذب، غش او خيانت.

يقول الله تعالى : (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ) التوبة/١١٩ ويقول النبي صلى الله عليه وسلم : )مَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا) رواه مسلم (رقم/١٠١(، والنبي صلى الله عليه وسلم يقول: (لا ضرر ولا ضرار) رواه ابن ماجه بسند صحيح. والله تعالى أعلم.

په جوس سينتر ،هوټل اونور..كې دعلماؤ اوخواصو كيناستل ، خوراک،څښاک او..

پوښتنه : محترم مفتي صاحب! په نني عصركې په بازار كې په هوټلونو ، جوس سينترونواونوروځايونوكې دطالبانو اوعالمانو په خاصه توگه دمقتدايانو لپاره ،خوراک څښاک اونورومشروباتو څښل څنگه ده ؟

المستفتي سعد ١٤٣٧\٩\٢٨.

الجواب :څرنگه چې په اوسني عصركې په بازارونو كې دخوراک اوڅښاک عمومي ځايونه دسروز،تلويزون،وي سي آراونورومفاسدوڅخه خالى نه وي نوداذكرشوو اشخاصولپاره په داسې ځايونوكې كيناستل ياداسې ځايونوته تلل له كراهيت څخه خالي نه دي ځكه يوخوهلته دمنكراتو وجود وي اوبل داسي ځايونه دتهمت اوداهل الحق له اهانت څخه خالي نه وي ،اوكه چېرته داسې يوځاى وي چې هلته داډول منكرات اومفاسدنه وي نوهلته بيا دخوراک اوڅښاک لپاره تلل ياكيناستل ياهم په لمړي صورت چې بل ځاى ميسر نه وي دعذر په وجه كيناستل پروانه لري.

لنډه داچې دخواصو لپاره په دې عصرکې بهتردادی چې دعذرپرته بازارونوته ولاړنشي اوکه دکوم اړتياله مخې ځې نوبيادي له داسې ځايونو څخه ځان ساتي اوکه هلته هم اړتياوي نوبيادي ترخپله وسه مناسب اوله منکراتوڅخه خالي ځای لټوي اوکه بياهم داسي ځای ونه مونډل شي اوضرورت هم وي نوبيادعذرله امله کراهيت ساقطيږي.

كمافي تفسير القرطبي :١٧;١٦/١٣؛ الرابعَةُ- خَرَّجَ مُسْلِم عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال:" أَحَبُّ الْبِلَادِ إِلَى اللَّهِ مَسَاجِدُهَا وَأَبْغَضُ الْبِلَادِ ألى الله أسواقها". وخرج البزاز عَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:" لَا تَكُونَنَ إن اسْتَطَعْتَ أَوَّلَ من يدخل السُّوقَ. وَلَا آخرَ مَنْ يَخْرُجُ منْهَا فَإِنَّهَا مَعْرَكَةُ الشَّيْطَانِ وَبِهَا يَنْصِبُ رَايَتَهُ". أَخْرَجَهُ أَبُو بَكْرٍ الْبَرْقَانِيُّ مُسْنَدًا عن أبى محمد عبد الغنى- مِنْ رِوَايَةِ عَاصِم- عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ سَلْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:" لَا تَكُنْ أَوَّلَ مَنْ يَدْخُلُ السُّوقَ وَلَا آخرَ مَنْ يَخْرُجُ منْهَا فَبِهَا بَاضَ الشَّيْطَانُ وَفَرَّخَ". فَفِي هَذِهِ الْأَحَادِيث مَا يَدُلُّ عَلَى كَرَاهَة دُخُول الْأَسْوَاق، لَا سِيَّمَا في هَذِهِ الْأَزْمَان الَّتِي يُخَالِطُ فيهَا الرِّجَالُ النِّسْوَانَ. وَهَكَذَا قَالَ عُلَمَاؤُنَا لَمَّا كَثُرَ الْبَاطِلُ في الْأَسْوَاق وَظَهَرَتْ فيهَا الْمَنَاكِرُ: كُرِهَ دُخُولُهَا لِأَرْبَاب الْفَضْل وَالْمُقْتَدَى بهِمْ في الدِّين

تنزيهًا لهم عن الْبقَاع الَّتِي يُعْصَى- اللَّهُ فيهَا. فَحَقٌّ عَلَى مَن ابْتَلَاهُ اللَّهُ بالسُّوق أَنْ يَخْطرَ ببَاله أَنَّهُ قَدْ دَخَلَ مَحَلَّ الشَّيْطَان وَمَحَلَّ جُنُوده، وَإِنَّهُ إنْ أَقَامَ هُنَاكَ هَلَكَ، وَمَنْ كَانَتْ هَذه حَالَهُ اقْتَصَرَ منْهُ عَلَى قَدْر ضَرُورَته، وَتَحَرَّزَ مِنْ سُوءِ عَاقبَته وبليته ...السَّادسَةُ- قَالَ ابْنُ الْعَرَبيِّ: أَمَّا أَكْلُ الطَّعَام فَضَرُورَةُ الْخَلْق لَا عَارَ وَلَا دَرْكَ «١» فيه، وَأَمَّا الْأَسْوَاقُ فَسَمعْتُ مَشْيَخَةَ أَهْل الْعلْم يَقُولُونَ: لَا يَدْخُلُ إلَّا سُوقَ الْكُتُب وَالسِّلَاح، وَعنْدي أَنَّهُ يَدْخُلُ كُلَّ سُوقٍ للْحَاجَة إلَيْه وَلَا يَأْكُلُ فيهَا، لأَنَّ ذَلكَ إسْقَاطٌ للْمُرُوءَة وَهَدْمٌ للْحشْمَة، وَمنَ الْأَحَاديث الْمَوْضُوعَة «٢» " الْأَكْلُ في السُّوق دَنَاءَةٌ". قُلْتُ: مَا ذَكَرَتْهُ مَشْيَخَةُ أَهْل الْعلْم فَنعمَّا هُوَ، فَإنَّ ذَلكَ خَالٍ عَن النَّظَر إلَى النِّسْوَان وَمُخَالَطَتهنَّ، إذْ ليس بذلك منْ حَاجَتهنَّ. وَأَمَّا غَيْرُهُمَا منَ الْأَسْوَاق فَمَشْحُونَةٌ منْهُنَّ، وَقلَّةُ الْحَيَاء قَدْ غَلَبَتْ عَلَيْهنَّ، حَتَّى تَرَى الْمَرْأَةَ في الْقَيْسَاريَّات وَغَيْرهنَّ قَاعدَةً مُتَبَرِّجَةً بزينَتهَا، وَهَذَا منَ الْمُنْكَر الْفَاشي في زَمَاننَا هَذَا.

ومثله في احكام القران للمفتي جميل احمد رحمه الله ؛الجزء الرابع.

وكما في حاشية الطحطاوي علي در المختار ١٧٦/٤؛ (قوله فإن كان مقتدي ولم يقدر علي المنع خرج ولم يقعد لأن فيه شين الدين) وفتح المعصية علي المسلمين فإنهم يقتدون به).

وفي الدر المختار ٢٢٥\٢؛( دعي إلى وليمة وثمة لعب أو غناء قعد وأكل ) لو المنكر في المنزل فلو على المائدة لا ينبغي أن يقعد بل يخرج معرضا لقوله تعالى { فلا تقعد بعد الذكرى مع القوم الظالمين } فإن قدر على المنع فعل وإلا يقدر ( صبر إن لم يكن ممن يقتدى به فإن كان ) مقتدي ( ولم يقدر على المنع خرج ولم يقعد ) لأن فيه شين الدين ... وإن علم أو لا ) باللعب ( لا يحضر أصلا ) سواء كان ممن يقتدى به أو لا لأن حق الدعوة إنما يلزمه بعد الحضور لا قبله.

احياءعلوم الدين ١٩\٢؛لأول: حكي عن إبراهيم النخعي أنه قال: الأكل في السوق دناءة، وأسنده إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم وإسناده قريب. وقد نقل ضده عن ابن عمر رضي الله عنهما أنه قال: كنا نأكل على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم ونحن نمشي ونشرب ونحن قيام. ورئي بعض المشايخ من المتصوفة يأكل في السوق فقيل له في ذلك فقال: ويحك أجوع في السوق وآكل في البيت، فقيل تدخل المسجد؟

قال أستحي أن أدخل بيته للأكل فيه. ووجه الجمع أن الأكل في السوق تواضع وترك تكلف من بعض الناس فهو حسن وخرق مروءة من بعضهم فهو مكروه، وهو مختلف بعادات البلاد وأحوال الأشخاص فمن لا يليق ذلك بسائر أعماله حمل ذلك على قلة المروءة وفرط الشره ويقدح ذلك في الشهادة ومن يليق ذلك بجميع أحواله وأعماله في ترك التكلف كان ذلك منه تواضعاً.

كما في اداب المتعلم ١٣١؛ولا يرضى من أفعاله الظاهرة والباطنة بالجائز منها، بل يأخذ نفسه بأحسنها وأكملها، فإن العلماء هم القدوة وإليهم المرجع في الأحكام، وهم حجة الله تعالى على العوام، وقد يراقبهم للأخذ عنهم من لا ينظرون، ويقتدي بهديهم من لا يعلمون، وإذا لم ينتفع العالم بعلمه فغيره أبعد من الانتفاع به، كما سبق من قول الشافعي رحمه الله. ليس العلم ما حفظ، العلم ما نفع. ولهذا عظمت زلة العالم لما يترتب عليها من المفاسد لاقتداء الناس به.

وكمافي رد المحتار ٢٤٥/٥؛ وَالْأَوْضَحُ مَا فِي التَّبْيِينِ حَيْثُ قَالَ : لِأَنَّهُ لَا يَلْزَمُهُ إجَابَةُ الدَّعْوَةِ إذَا كَانَ هُنَاكَ مُنْكَرٌ ا هـ.

قُلْت : لَكِنَّهُ لَا يُفِيدُ وَجْهُ الْفَرْقِ بَيْنَ مَا قَبْلَ الْحُضُورِ وَمَا بَعْدَهُ ، وَسَاقَ بَعْدَ هَذَا فِي التَّبْيِينِ مَا رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ { أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: صَنَعْت طَعَامًا فَدَعَوْت رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ فَرَأَى فِي الْبَيْتِ تَصَاوِيرَ فَرَجَعَ } ا هـ.

قُلْت : مُفَادُ الْحَدِيثِ أَنَّهُ يَرْجِعُ وَلَوْ بَعْدَ الْحُضُورِ وَأَنَّهُ لَا تَلْزَمُ الْإِجَابَةُ مَعَ الْمُنْكَرِ أَصْلًا تَأَمَّلْ.

والله اعلم.

## ايا ايزي لوډ Easy load سود دی ؟

پوښتنه : علماء کرام ددې مسئلې په اړه څه فرمايې چې : ايزي لوډ کول جائز دي اوکنه ؟ دلته ځيني کسان وايې چې : دا سود دی ځکه چې موږ دکاندارته سل روپۍ ورکړو چې دهغه په بدله کې دوکاندار زموږ په نمبربانـدي کمـي پيسي راليږي آياد داخبره صحيح ده ؟ که ښه قناعت کونکی جواب راکړئ منندوی به مويم

جواب : بايد وويـل شي چې دسود د متحقق کيدلو لپاره د بدلينو متحدالجنس والقدر کيدل يا دواړه لوري نغدکيدل ضروري دي ، کـه چيرته دبدلينو جنس اوقدر مختلف وي يا نغدي نه وي نو په دې صورت کې له يوه لوري زياتوب اوله بل لوري کمتوب جائز دی ، کله چې مو دا اصول ځان ته معلوم کړل نو موږ وينو چې موبايل کمپنـۍ دنغدو پيسوپه بدل کې منفعت ( ايئرټايم ) ورکوي ، که هغه دکارت په صورت کې وي اوکه دايزي لوډ په صورت کې په دواړوکې کمپنۍ دمقرره ټيکس له جلاکولو وروسته دپاتي پيسوپه مقابل کې صارف ( استعمالونکي ) ته منفعت ورکوي ، يواځي دافرق يې شته چې دکارت په صورت کې صارف په مستقيمه توګه له کمپنۍ څخه منفعت ترلاسه کوي او دايزي لوډ په صورت کې دوکاندار له ورانـدي اخستل شوی منفعت دخپل کميشن په اخستلو سره دصارف طرف ته ليږدوي ،څرنګه چې په دواړو- کارت او ايزي لوډ- په صورتونوکې دنغدو په بدل کې نغدي نه وي بلکه منفعت ورکول کيږي نوځکه دواړه صورتونه جائز دي.

والله تعالی اعلم

مفتي ابوياسر

# هلال مهاجر

## د غیرتونو منار

د غزا د ډول غربا د تورو شرنګ دی
د آسونو ترپهار د غشو شنګ دی

عبیده ابن جراح توره په لاس ده
ښکاري بیا نن د اسلام او کفر جنګ دی

بیا خالد ابن ولید صفونه جوړ کړل
دهرقل په لښکر باندې غورځنګ دی

بیا ضرار ابن اضر میدان ته راغئ
د جورجان پر پلویانو ژوندون تنګ دی

لا خو متې شته، لا توري مو زنګ نه دي
لا ساتلی مو سنګر او لا کړنګ دی

هر یو ول دې دپګړی غازي طالبه
لوړ منار د غېرتونو او د ننګ دی

اې د وخت سپینه رهبره ستاله وېرې
په لړزان غربي ښامار غربي پیرنګ دی

ستا هر قول، هر یو فعل مجاهده
دې مغرورې دنیاګی ته خطر زنګ دی

رب دې تل لره کامران د وخت امامه
د هلال غزل په تاباندې ګل رنګ دی

# Shahamat



په بغلان کې مجاهدينو ته په لاس ورغلي جنګي مهمات

ستا په نوم او توکل مې هر غورځنګ دی
د پردي مزدور، اجير سره مې جنګ دی

له دعا نه مې که هم د وينو بوی ځي
عفوه بويه، وطن تول په وينو رنګ دی

ناګار